د حمید سوز نه شعر وسوم وسوم
ته عجب ساز د رنګین وائې حمیده!

د آواز که ندې رباب له زیروبمه
دا زړې فکر د مه شه نظري

# عبدالحمید بابا

لیکونکې

خواجه محمد سائل

په له سو سو مېرنو د میدان یو ړو
فارسي یا نو د حیرت کو تې په خلیه کړے

شا بس شا بس د حمید فکره تو زنه
چه حمید سخن ساز کړه په پښتو کښې

د رک
عظیم پبلشنګ هاوس خیبر بازار پېښور

بیه ۰۰-۳۵ روپۍ
د چاپ کال ۱۹۸۵ء

# فهرست

# دویمه برخه

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

# سریزه

نحمدهٗ ونصلّی علٰی رسوله الکریم ط

دَ ادب میدان ډیر وسیع، پشپړ اؤ متنوع دے. حدونه ئے معلوم نهٔ دی، لامحدود دے، بیکران دے. هم رنګین دے، هم سوزان دے. په دے چه نهٔ یوازے دا چه دانسانانو ستا داستان دے، بلکه دا زمونږ د زړونو ترجمان هم دے. زمونږ آرزوګانے، زمونږ غمونه، زمونږ خوشحالئ، زمونږ جذبات اؤ زمونږ احساسات ټول دادب د دے بیکرانه دُنیا اوسیدونکی دی. ادب حقیقت کښے عالمګیر دے ځکه چه دا انسانی دے اؤ انسان په هرځه دے، په هره زمانه کښے دے اؤ په هرحال کښے دے

انسان دے. د ده احساسات د ده جذبات، د ده افکار او د ده خیالات ټول یوه مشترکه سرچینه لري او د ده د ژوند واقعات او حادثات هم تر ډیره حده مشترک دي. کیدے شي چه د خپل جغرافیائي محل وقوع له مخه څوک د سمندرونو د موجونو، څوک د دښتو او صحراګانو، څوک د سبېرازه او آباده میدانونو او څوک د لوړو غرونو د سر ددو آموخته وي، خپل دا ماحول هغه ته هم ډېر څه ورکوي. فکر ونه د خپل ماحول نه چه څه اخذ کوي د تجربے په صورت کښے او که د مشاهدے په صورت کښے وي هغه دے مونږ ته را کوي نو هغه څه چه آفاقیت لري او په ټوله انساني نړۍ حاوي کیږي که څوک د غرونو اوسیدونکي وي، که د میدانونو، د دښتو صحرا نوردوي او که د دریابونو لامبوزن، د هغوی ټولو خطاب انساني نړۍ ته وي. هغوی د انسانیت ترجماني کوي او انسان ته د جغرافیائي حدبندونه بالاتر په انساني نظر ګوري. د داسے خلقو د غه داخلي افکار یا خارجي تصورات چه په خوږه خوندناکه او دلپذیره ژبه کښے وړاندے شي نو د آفاقي ادب حیثیت حاصل کړي. د دے دپاره نه څو د ژبے قید شته، نه د ماحول. نه د زمانے پابندي او نه د معاشرے تقاضے.

د دنیا هر لوئے شاعر او لوئے مفکر خپل ځان په دے جوړ دنیا ته ښکاره کړے دے. هغه خپل افکار، خپل مشاهدات او خپل تصورات د کومے خاصے طبقے، کوم خاص وګړي یا کوم خاص نوعي د پاره محدود کړي نه وي. هغه هر چا ته په یو جوړ خطاب کړے دے. د یونان مفکرین

دی اؤ که د هند و فارس عالمان، د مصر اؤ د چین فنکاران دی اؤ که د عرب اؤ عجم سخنوران، پا هم په دغه مقام موندے دے. عالمگیر حیثیت ورته حاصل شوے دے. د هغې محض اؤ محض یؤ توټل پاتے شوے دے اؤ هغه دا چه هغوئ انسانیت ته د انسانیت په سترګه کتلی دی اؤ انسان ئے انسان ګنړلے دے. هغوئ د رنګ، نسل، جغرافیې یا سیاسی حدبندو په خانوکښې نهٔ دے بند کړے دے. دغه د هغوئ د عظمت اؤ د هغوئ د پیغام اصل خوبی وه.

بیشکه ژبه په دغه چا وی د هغې ویونکو ته محدوده وی. څکه که یؤ پیغام هر څو عالمګیر اؤ د آفاقی سنګلا او خو بیانو لرونکے وی بیا هم هغه د ژبے د ویونکو اؤ په هغه ژبه د پوهیدونکو تر حده وی د نورو ژبو ویونکی اؤ د نورو ژبو پوهیدونکی د هغې نه څهٔ استفاده نهٔ شی کولے. دا کمزوری د پیغام ورکونکی نهٔ ده، د ژبے د محدودیت ده. ژبه په خوریږی اؤ پیغام هم ورسره خوریږی. د پیغام عظمت په خپل ځائے قائم اؤ دائم وی. اؤ هرکله چه د دے پیغام په قیمت اؤ قدر پوهیدونکی د نړئ نور وسیدونکی د دے نه خبر شی، نو هغوئ یا خو د هغې ژبے د زده کولو څهٔ تابیا وکړی اؤ یا د هغې ژبے د ملغلرو نه د استفادے دپاره هغه خپلے ژبے ته منتقل کړی. د دُنیا د ادب بے شماره شه پارے هم دغه شان دیوے ژبے نه بلے ژبے ته اؤ د بلے نه بلے ته د ترجمے په ذریعه رسیدلی اؤ د انسانی نوعې په خیر اؤ ښیګړه داخلی وی. د نورو ژبو په شان پښتو هم د فکر اؤ نظر خاوندانو

نه خالي نه ده. په دېکښې هم ډېر لوئې لوئې اهل نظر او صاحب فکر اکابرين تېر شوي دي. هغوئ هم دے دُنيا ته څه پېغام ورکړے دے. خپله تجربه او خپله مشاهده ئې د انساني نوعې په خير دراوستو دپاره د خپلو عالي افکارو په کار راوستې ده او هغه څه چه ئې د ادب دنيا ته ورکړي دي يوائې زمونږ دپاره نه دي بلکه د ټول انسانيت دپاره دي. په دے څه که مونږ په خپله هم د هغې نه څه استفاده نه ده کړې.

خوشحال خان خټک، عبدالرحمان بابا، کاظم خان شيدا۲، او عبدالحميد بابا يا دا سے نور بېشماره پښتانه سخنوران د دُنيا د لويو مفکرينو په هغه ډله کښې شمار دي د کوم ذکر چه مونږ د آفاقي مفکرينو په لړ کښې وُکړو. مونږ دا نه وايو چه کني دا ضرب المثل څه حقيقت نه دے چه "د خپل کور خور لور کرمېنه وي" او نه د دے سره اتفاق کوو چه څوک دا وُوائي چه پرېږده مړه! په پښتو کښې به لا هم څه د کار خبرے وي مونږه دا منو چه د دے متل په رڼا کښې د ځينو وړو نه مونږه مرغوب هم يُو او د هغو د سيکوالو او سخنورانو د افکارو ښکلا او شائستګي رانه د خپلې ژبے د مفکرينو او سخنورانو د افکارو نه افضله او برتره هم ښکاري دا ئې د پخوا راسے په مونږ کښې دا روان دے. مونږه د مرے ځينې د ښاوندانو ژبے ته هم مړه ژبه ويلې دي. او دا مېنه لا هغسے روانه ده.

پروفيسر خواجه محمد سائل څوک چه يو ښه تجربه کار اُستاد دے

او د پښتو ادب ، او شعر سره ډېره زوره علاقه لري هغه د پښتو د درنو نومورو او لوړې درجې د شاعرانو محقق او قاري دے. هغه د خوشحال بابا او رحمان بابا د مقام او فن د مطالعې سره سره د دے خبرے ته هم خیال کړے دے چه دا دوه بزرگان چه د پښتو ادب په دنیا کښې د یو حُجرا مسلک او شاعرانه بیل بیل سبک خاوندان دی او پښتانه او نوره دُنیا هم دوی د عالی افکارو او لوړ مقام منونکی او اعتراف کوونکی دی. د غه شان د پښتو ژبې مو شګاف شاعر عبد الحمید بابا ماشو وال هم شاعرانه د یو بیل سبک او جدا مکتب خاوند دے.

هغه هم د پښتو ادب د دُنیا یو داسے سپیځلے غرے دے چه د ادب په آسمان ئے یو جدا کهکشان جوړ کړے دے. د هغه د شعر ښکلا د هر صاحب نظر نقاد په نظر کښې د پښتو ادب شاهکار دے. د هغه شاعری د عجم د مستند او استاذانو فن د شاعرئ سره همسری کوی او د هغه په کلام کښې هغه ټول محاسن، هغه ټولے رنګینئ او هغه ښکلے ښکلا موجود ده کومه چه شعر له د آفاقیت او عالمګیریت مقام هم ورکوی او د دوام په مسند ئے هم کښینوی.

د حمید بابا د شعر هره زاویه او هره رنګینی منفرد حیثیت لری. دا د فانوس هغه رنګا رنګا ځ دی چه تکه د جادو د لالټین په بیله بیله زاویه بیله بیله ځلا لری. مونږ د حمید بابا په حقله د شباعلی پروفیسر خواجه محمد سائل دے ټکی نه نه بولو چه په دے هرکلے وایو په هغه د پښتو ادب یا تو د یو جدا سبک او د یو منفرد مکتب فکر د

خاوند تنقیدی مطالعه په خپل دے کتاب کښے کړی دۀ بلکه په دے هم چه د رحمٰن بابا په رنګ ددۀ په کلام هم د چا توجه مرکوزه شوه اؤ په حمید بابا ئے یو ښۀ ښکلے اؤ په هر لحاظ د یو جامع تکل کار سرته ورسولو. دا منو چه د خواجه محمّد سائل دا تکل حرفِ آخر نۀ دے. ځکه چه بقول کسے

ګمان مبر که به پایان رسید کار مغان
هزار بادۀ ناخورده در رګِ تاک است

بیا هم د ښاغلی سائل دا لیک نۀ یوازے دا چه د عامو لوستونکو دپاره بلکه د ادب د طالبعلمانو، محققینو اؤ مبتدیانو ټولو دپاره یو ډیر په زړۀ پورے کوشش دے.

ددے کتاب موضوعات ګڼړ هم دی اؤ مختلف النوع هم. په دیکښے د افکارو مطالعه هم شوے ده اؤ د ادبی نو نو فنی ښکلاته هم توجه ورکړے شوې ده. هغه مضامین اؤ موضوعات چه حمید بابا په خپل کلام کښے ځائے کړی دی اؤ د کوم دپاره چه هغه د سخن مقام خاوند ګرځیدلے دے هغه ټول موضوعات هم ښاغلی سائل په خپل دے کتاب کښے سره د خپلے تنقیدی رائے په ګوته کړی دی.

زمونږ د مشرقی شاعرۍ دوه اهم موضوع ګانے چه هغه د حمید بابا په کلام کښے ښکاره لیدے کیږی، ښاغلی سائل په وضاحت سره په د غه موضوع ګانو هم بحث کړے دے.

د عشق حقیقی اؤ مجازی بیان د هر شاعر دلچسپه موضوع ده

دے سره سره د متقدمینو په شاعرئ کښے اخلاقیاتو ته هم خاص توجه شوے ده. دا قسم شاعری زمونږ د معاشرے د هر غړی د تربیت اؤ د اخلاقی تعلیم دپاره ضروری هم ده اؤ د زمانے تقاضا هم کوه. په خپل خپل وخت کښے هر شاعر په خپل خپل انداز کښے په دے موضوعاتو طبع آزمائی کړیده خو قبول عام اؤ دوام دهغه پائیک ته حاصل شوے دے دچا په وینا کښے چه هغه تهوے خوبیانے، حسن او شاعرانه عظمت موجود وو. یا نه چه الله تعر دغه توفیق ورکړے وو، دغه وجه ده چه د حمید دیوان "د مرغلرے، مرجان" د شمار په دا سے څو دیوانونو کښے شامل دے چه دغه خصوصیات پکښے د اول نه تر آخره موجود دی اؤ شباغلی سائل ئے په تفصیل سره ذکر کړے دے.

دنورو شاعرانو سره د عبدالحمید بابا موازنه اؤ دهغوئ په کلام کښے یو تربله د افکارو توارد اؤ د موضوعاتو یوشان والے هم یوه داسے موضوع وه چه تفصیلی توجه ئے غوښته. په دے لړ کښے هم شباغلی سائل د حمید بابا اؤ د نورو شاعرانو موازنه اؤ مقابله کړیده اؤ د هغوئ فنی ښکلا اؤ د کلام محاسن ئے په کوته کړی دی. که یو پلو مونږ شباغلی پروفیسر سائل ته د هغوئ په دے ښکلا د زړه د اخلاصه مبارکی ورکوو نو بل پلو زمونږ دا یقین دے چه شباغلے سائل به هم مونږ سره په دیکښے اتفاق ؤلری چه د هغوئ دا ښکلا دے میدان ورومبے قدم دے. دا ابتدا ده

د هغې وسیع تحقیق کوم چه به راتلونکی محققین او تنقید

نګاران په دے لړ کښې کوی۔

مونږ دعا کوو چه د سباغلی سائل دا تکل او دا کوشش دے

الله تعالیٰ د نورو د پاره د لارے مشعل او ګرځوی او د حمید بابا

فن او د کلام نور څرګند دے هم خدائے د دے طرفته متوجه کړی.

څکه چه هره نوے مطالعه او هر نوے کوشش په خپل لمن کښې

څه نوی خیالات او نوے زاوئے هم راوړی او په ګوته کوی .

زمونږ دا یقین دے چه د سباغلی سائل دا کتاب به لوستونکو ته

ډیرے د کار خبرے څخ ته راولی .

وَمَا عَلَيْنَا إِلَّا الْبَلَاغ

محمد نواز طائر

# خپلې خبرې

عبدالحمید بابا د پښتو ادب د هغه دریو دېنو اوڼا متو
ناعرانو نه یو دے. څوک چه د یو سبک پیروکار دے. یعنې که خوشحال
ان خټک د "قومیت" یا رحمان بابا د "تصوف" شاعر دے نو عبدالحمید
ابا د "نازک خیالئ" د سبک اُستاد او مشر دے. خو دا د پښتو ادب بد
ستی ده چه د عبدالحمید بابا ژوند او کلام پلوړ د لیکوالو ډیر کم
م کړې دے او تر اوسه د هغوئ په مزار ډیرے کم مشاعرے
کلیزے شوې دي، بلکه د نه کید و برابر دي. د حمید بابا په مزار څو
کوتو په شمیر مشاعرو او کلیزو په لړ کښې که د لته د کران مشر او شاعر
مود قلندر د بده بیرے ذکر او شي نو بے ځایه به نه وي. د چا
ه کوشش، منډه تره او حمید بابا سره د عقیدت او مینے له کبله
ما په یاد دوه یا درے مشاعرے شوي دي او ډیر په ګرانه او
لیف شاعران او ادیبان بے لارے بے کوردے او بے روه مزار ته

د شاغلي قلندر په کوششو نو رسيدلي دي او د غلته ئې سنه قدر او عزت شوے دے.

د حميد بابا د ژوند او شاعرئ په حقله څه موده مخکښې ماته مقالے ليکلے وے چه هغه د پښتو ټولنې دري مياشتنۍ رسالو او مجلو کښې چاپ شوے دے. اوس د ځينو ملګرو او د ادب مينه والو دوستانو په بيا بيا تاکيد او وينا ما دا مقالے په ډيرے خوارئ او تکليف ديو او بل ځائ نه راغونډے او را جمع کړے او د کتابي شکل ئے ورکړو. د حميد بابا د ژوند او شاعرئ په حقله زما دا کوشش تر کومه حده کامياب دے. دا فيصله تو په لوستونکو ده. خدائ د ورکړي چه د پښتو ادب شوق مينه راپاس او د حميد بابا د ژوند او شاعرئ په حقله دد ے اولنۍ کوشش نه پس نور هم سنه معلوماتي کتابونه او ليکي. چه د خوشحال خان ختک او عبدالرحمان بابا په شان زمونږ دد ے عظيم شاعر په حقله هم لوستونکو ته څه خو معلوم شي.

لکه چه ښکاره ده. حميد بابا د پښتو ادب د نازک خيالئ د ميدان استاذ او مشر دے. او د نازک خياله موشګاف او بارک بين شاعر په نوم ياديږي.

د عشقيه، صوفيانه او اخلاقي شاعرئ نه علاوه د ننۍ زمانے د يو معاشي نظريئ خاوندان ئے د پښتو ادب رومبنے سوشلسټ شاعر بولي. د پښتو ادب د شاعرانو په قطار کښې کورے که د بل يو شاعر په کلام کښې دومره استعارات، تشبيهات، کنايات، مصوري، منظر کشي

متانت، صفائي، چُستي، رواني، سلاست، لطافت، علمي اصطلاحات موزون اؤ مناسب تکي. دڅرې خوږ والے اؤ بيا په تيره فنکارانه نزاکت اؤ مضمون آفريني وي لکه چه د حميد بابا په شاعرئ کښې موجود دي.

دغه وجه ده چه د پښتو ادب ليکونکو ته د دوئ د شاعرئ په مختلفو اړخونو د تحقيق اؤ څيړنې سبق لوڅے اؤ په دا وارت بيرت ميدان مخکښې پروت دے اؤ د حميد بابا د ژوند اؤ شاعرئ په مقله چه د ادب طالبعلمان کومه تنده اؤ کے محسوسوي. هيله ده چه د دا تلونکي ګول شاه زلمي اؤ ا ديبان به دغه تنده سره اؤ کے پوره کړي.

خواجه محمد سائل

بهادر کلے پېښور



راقم الحروف د حمید بابا په مزار ۳ر دسمبر کال ۱۹۷۲ء



سیګ بابا په مزار د مشاعرے یو منظر ۳ر دسمبر کال ۱۹۷۲ء



د سیګ بابا په مزار د مشاعرے یو منظر ۳ر دسمبر کال ۱۹۷۲ء

# دحمید بابا ژوند حالات

دانسان وجود د بابا آدم نه تر دے دمه زرګونه کاله مخکښے راسے رادوان دے۔ او لا په مخه روان دے. خدائے زده چه په دے دومره لوئے او اوږد دورکښے به څومره مخلوق پيدا او فنا شوے وي کوم رنګ جوړے او څه شکل ښکلے ښاسته کل ځوانۍ به د خاورو سره خاورے شوے وي۔ څومره تکړه بهادر ځوانان او زړه راښکونکے بشرے به زمکے خپله لمنه کښے رانغښتے او خوړلے وي. چه سرے دغه پلو پام او سوچ او کړي نو زړه ئے دے نيمګړے او عارضي دنيا نه وُتښتيږي او څه لحظه دژوند او دُنيا نه د زړه توري په عقيدۀ کلک او ټينګ ؤدريږي. خو بيائے دُدنيا عيش وعشرت زيب و زينت او خوشحاليانے ځانته راکاږي او دغه خيال ئے متزلزل او بے ځايه شي او که د مخکښے نفس خوشحالولو او دُوح زهير ولو پسے ناواخلي. او دا عارضي ژوند هغه ابدي ژوند دپاره قربان نکړي

او هم هغه تورتیپ او زورورے کنده کښې پروت پاتے شی، چرته چه د خپلے ناپوهئ بے علمئ او جهالت په وجه محکښې غزیدے وی -

د نړئ هر انسان په لږ هم ځمه شعور او عقل لری د ښه او بد، خیر او شر او دنیا او آخیرت په حقله سوچ او فکر کوی. خو دیر کم کسان د نفسانی او شیطانی پنجو نه ځان خلاص کړی او روحانی او رحمانی دے ځمه ملګرتیا او دوستی وساتی دا انسان ذړه او ضمیر او ماغزو کښې هر وخت د ښه او بد، خیر او شر ترمینځه د غه جګړه روانه وی. په دے جګړه او ښکتے ښکتے کښې ښه او خیر ډیر کم بریالے کیږی او انسان اکثر د شر او شیطان د جنځ لاندے وی خو هرکله چه خیر بریالے شی نو د انسان نوم ټکه د نمر وړېرقیبږی د دنړا شعلے، خیبرے او نخیبات ئے ترلرے ویرسی او د مړینے نه پس هم مړنه شی -

لنډه دا چه په دنیا کښې هغه انسان تل ترتله ژوندے او دائم پاتے شوے دے چا چه د ځمه لوئے کارنامے، بهادرئ، انسانیت او سرپیتوب مظاهره کړیده او چه کله دانسان له د غه اړخه پټیسه شوئیدلے ده نو بیادا انسان او نورو حیواناتو منا ورو ترمینځه هیڅ بیلتون، فرق او امتیاز پاتے شوے نه دے. او وکه څرنګه چه د هغوئ ژوند او مړینه بے نخښے بے پتے او ورکه او ښاره کښې وی د غه شان دا بے خونده مړ او بے ضمیره انسان د هیڅ اهلیت او قابلیت

چونکه گرځېدونکې نه دے او دوه لاس دوه پښے د دُنيانه رُخصت شوے دے او مړينے نه پس ئے هيڅ نوم نشان او اثر پرې پاتے نه دے.

حميد بابا په قام ماڼړه مرمند دے په مومند وکښے دوتبرے او په دوتبرو کښے خدريزے دے او په ماشوګګر کلی کښے زيږيدلے دے. «ماشوګګر» کلے «ماشو» هم نوميږي او «ماشوخيل» نوے کلی نه دے اوځانله دے. د پېښور نه کوهاټ پلو د سړک په بره اړخ د بډه بېرے تاڼړه په خوا کښے يو کچه شان سړک د «ماشو» يا «ماشوګګر» په مينځ ماشوخيلو، مشترزو او شيخان کلی ته ورځے د باړے قلعه پوخ سړک تخمينه ملاويږي.

په کال ۱۹۵۸ء کښے په پېښور کښے د انوار الحق له اړخه په د حميد بابا کوم «دُرومرجان» شائع شوے دے او د کابل د پښتو ټولنے د مشر صديق الله خان رښتين له طرفه چاپ شوی «دُرومرجان» هو به هو نقل ښکاري. نو ښاغلی ايچ ايس انوار الحق دے کتاب په دوباره چاپ کولو کښے دومره زحمت او تکليف هم پورته کړے نه دے چه د حميد بابا د استوګنے د ځائے صحيح معلومات او پته ئے کړے وے. نو پس په دغه د ژوند په حقله ښاغلی رښتين څه ليکلی دی هم هغه ئے د الفاظو په جامه کښے تاو راتاو کړيدی او د خپل دغه تاليف په ديباچه کښے ئے هيڅ څه نوے خبره او انکشاف کړے نه دے. د حميد بابا قبر نن هم د ماشو يا ماشوګګر په هديرو کښے موجود دے. په دکلی په خوا کښے د خوړ نه پورے غاړه سويل

ډېرے ته لویه هدیره ده. د حمید بابا دا یو شعر د هغوئ دا شنو ګټو ترجماني کوي.

"په د عشق تا ونے رنځ د حمید مل شو
زر به بنخ په هدیره شي د ما شو"

د حمید بابا د کلي په حقله د ځینو لیکوالو مغالطه او تیند کله په د قاضي میر احمد شاه رضواني ۱۲۷۹ هـ نه تر ۱۳۵۴ هـ دے شعر په وجه وي.

"بیا په دور د تیمور شاه او دل له ورایه
ما شو خیلو کښے دا ډنوت حمید نه ژ"

د میر احمد شاه رضواني دا یو شعر نه یوائے دا چه رحمٰن بابا د مسکن او ځائے ځائیګي په حقله غلط او بے ځایه دے، بلکه شاعر د حمید بابا د ژوند په حقله هم سهوه خوړلے ده. ځکه چه دا بدلیانو دور د حکومت د نادر شاه دُراني د مرګ نه پس په ۱۱۶۰ هـ کښے د احمد شاه ابدالي د سلطنت نه شروع کیږي او بیا د تیمور شاه ابدالي حکومت تو دیر ورو ستو په ۱۱۸۷ هـ کښے شروع کیږي. چه د حمید بابا ژوند تو دغه دننه په هیڅ شان نه تصور کیدے نه شي. د میر احمد شاه رضواني په دے یو شعر یوائے ریښتیني نه بلکه د هغوی نه ډیر مخکښے کیپټن ایچ جي راورټي هم تیر وتے دے. دغه انګریز لیکونکے په خپل کتاب "د پښتنو د پښتو ژبے ګرامر" (GRAMMER OF THE PASHTO LANGUAGE OF THE AFGHANS)

کښې د شاعرانو د ذکر په لړ کښې لیکي.

"بل لیکونکی مُلا عبدالحمید وو. په د تیمور شاه په زمانه کښې

ئے ژوند کولو چه د احمد شاه ځوئے اؤ دَ تخت وارث وو. د هغهٔ غزلونه

زیات تر لکه د یورپ د لیکوالو په شان اخلاقي درس ځنې تعلق لري

هغه د پښتو شیخ سعدي دے. د هغهٔ شعرونه د خوشحال د طرز نه

د تمرلونه زیات د اهمیت جوګه دي اؤ ځوک هم د هغهٔ مقام ته

رسیدلی نهٔ دي. د غه وجه ده چه د دے ګرانمر په لیکو کښې زیات

د هغهٔ اشعار اخستے شوي دي"

دَ ماشو یا ماشو ګګر کلي د مشرانو یا سپین ږیرو د وینا مطابق

د حمید بابا کور دَ ماما خیلو کندي ځنې جُخت پیوست بره سرته دَ

خیرې خیلو په کندي کښې دَ خیري جماعت خواؤ شا ؤو. د خیري خیلو

ځینے کسان د عوی لري. چه حمید بابا زمونږ د نیکو نو کل محمد اؤ

نورمحمّد نیکه وو. ولے لکه د نورو ډیر پښتنو د غو کسانو ته د خپل

خاندان پوره شجرهٔ نسب معلوم نهٔ دے اؤ نهٔ د عبدالحمید بابا

په حقله ورته څهٔ خاص معلومات شته دے. خو د دغه مشرانو د

وینا ځنې دو مره ضرور څرګندیږي چه حمید بابا واده کړے وو...

الله پاک ورله بال بچ هم ورکړے وو. د غه راز د "نیرنګ عشق" په

اختتام کښې "پند د فرزند سعاد تمند" چه خاص وعام شي ترے بهره مند

د موضوع لاندے صفاظا هریږي. ځکه چه د حمید بابا د غه نصیحت خالص

د هغهٔ خپل مشر ځوئے ته دے اؤ د نصیحت د غه باب اودبیتونه د مرزا

محمد اکرم کنجاهی د فارسئ "نیرنګ عشق" نه څه نږدې او تعلق نه لري. د دغه موضوع محکستیني د دې شعرونه دا سې دي.

ع

اے د دین دنیا په کور کښې بلې شمع!

جلوه ګر اوسې مدام زما په جمع

د دراز عمر له وُ نے برخوردار شې

د دنیا دئ د دائرې قطب مدار شې

دم قدم د سعادت مل وی نیق شه

خوښنده ترما فلک په تا رفیق شه

او بیا ورته دعاګوی چه الله پاک د تهول مطلبونه ترسره لره د خدائے پاک نه بل چاته محتاج مه شې او د تهولو بدو او بدانو محفوظ اوسې. بیا د نصیحت آغاز کوی. ع

د غفلت موتی د اوکاږه له غوږه

یوُ خو پند ه درته وایم وُ نے نغوږه

او بیا درته د نصیحتونو سلسله څه دا سې ساتی چه ،، د الله پاک د وحدانیت قائل اوسه. د رسول پاکؐ په رسالت شک مه کوه د ځلورو دوستانو په حقله د غیرو خلقو او چے پوچے خبرے په غوږ ونو مه باسه. د شریعت علم و عمل نه خپل دم قدم مه تیر باسه. د ګناه نه په وس تښته او د چا آزار مه کړه. د ریا بندګی مه کوه او د الله پاک د پاره هر عمل په اخلاص او صفا زړه کوه "

بیا مخکښې وائی،، چه دُنیا ته مینه اَو محبت مهٔ ساته- په معمولی خوراک، پوشاک باندې قانع اوسه- د الله پاک د هر نعمت شکر گذار اوسه- خرڅ په خپله اندازه کوه اَو مکلف طعامونه مهٔ خوره

س

"که ساړهٔ وی که غارمهٔ په ژمی اَوړی
نیلرې مهٔ غرړوه پښه تر خپل خرتوړی"
"حاصل مهٔ شه هغه زیب لهٔ دُ رمرجانه
په دې خپرو کا غوړوهٔ تر ما جانه!"

اَو آخیری شعر لوستو ته صفا معلومیږی چه د حمید بابا دَ نصیحت تعلق خپل مشر ځوئے ته دے. ددې شعر نه دا هم ثرګندیږی چه د حمید بابا نور هم ګنړ بال بچ دے اَو خپل مشر ځوئے ته تاکید کوی چه زما په نمیرموجودګئ کښې دکور ټول بندیان تر خپلې قبضې لاندې ساته په شعر کښې د ،،حکم،، اَو ،،هیبت،، توری لکه چه دکشرانو اَو ماشومانو دپاره وی-

س

،،ساته ګل دکورسړی ترقبض لاندې
دخپل حکم هیبت پروت لره وربا ندې،،

د حمید بابا کلام لوستو ته معلومیږی چه هغوئ د مغل خاندان دَ دریو بادشاهانو بادشاهئ په خپلو سترګو لیدلے وې- داڅو شعرونه لکه چه دا ورنګزیب بادشاه په ژوند اَو د باد شاهت په دوران کښې لیکلے شوی وی-

س

" په قوت د یار د دَر دَ گدا یمه
د اورنګ باد شاه د تخت لاندے موا سشوم "
" چه ے خلق لو تږے د دیدن بولی
اورنګ مه شمه هیڅکله ز لیل نه یم "
" چه ئے تا غوندے دلبر په خنګ کښے کښینی
د هغو دماغ بلند وی تر اورنګه "

د حمید بابا د دے اشعارو پوره او مکمل غزلونه که د فن په لحاظ څخه وکتے شی نو د غه غزلونه به صفا بو ته شی چه دا کلام دیو نیه پوخ استاذ شاعر د ذهن پیدا وار دے چه د شاعرئ د فن مختلفو ارتقائی مرحلو او مدارجو نه تیر شوے دے.

مونږ دے ځائے د بنا غلی صدیق الله خان رښتین هغه تحقیق او تیره نه په ځائے سا تو د کومے ترمخه چه هغوئ د حمید بابا د پیدا ئش کال ۱۰۷۵ ه ښودلے دے. د هغوئ د غه خبره او تحقیق اګرچه په فرضیاتو او قیاسیاتو بناء دے او څه پوخ دلیل او ثبوت نه لری بلکه محض د دے دوؤ شعرونو څخه اخذ دے

" چه د ښکلو د درګاه ګدا ئی موموم
هاله تو به د محمد شاه له سلطنته "
" له هغه په پوهیدلے په نه شه بد یم
رسیدلے د پنځاه و پنځ تر حد یم "

لکه چه ښکاره ده د محمد شاه د بادشاهت زمانه د کال ۱۱۳۰ ه نه شروع

کیږي ی او تر کال ۱۱۴۰ ھ پورې رسي. نباغلی ریشتین د حمید بابا په ترکیب بند نظم کښې د پنځو پنځو سو کالو دا عمر د محمد شاه بادشاه د بادشاهۍ شروع کید و د سن ۱۱۳۰ ھ نه منقی کړې او اونیکلي دي. او په دغه شکل ئې د حمید بابا د پیدایښت کال ۱۰۷۵ ھ ښودلي دي. په دغه جوړ حمید بابا د اورنګ زیب بادشاه د تخت نشینۍ په اووم کال دې دنیا کښې سترګې پرانیستې وې او د هغه د مرګ ۱۱۱۸ ھ تر وخته نبه پوخ عمر یعنی تقریبًا درې ۴۳ څلویښت کاله ته رسي.

د حمید بابا یو غزل او س هغه یو شعر هم اوګورئ کوم چه د اورنګ زیب بادشاه د مرګ نه بخت پس لیکلي معلومیږي.

~

"دغه په شور نه وی د هند په میخانه کښې
چه اورنګ ئخه د حکم جام نسکور شو"

د دې شعر څخه تری غزل لوستو نه صفا ښکاریږي چه دا غزل د فن او مضمون په لحاظ سره د یو پوخ عمر شاعر او ښنا ذ د لاس لیکلي دي. په دې غزل کښې د دغه وخت د حالاتو نقشه راکیښلی شویده او د ظالمانو حاکمانو او منصبدارانو ظلم او زور زیاتې ښودلې شویدي

~

"غریب خلق مردګان په کښې ورتیږي
ظالمان منګې ئې پیښو ر ګور شو"

حمید بابا د دې غزل اخیرنی شعر او مقطع کښې د دنیا زیب و زینت

اُو مینے نه ذ زړهٔ تو دیٔ اعلان هم کوی او د زړهٔ اطمینان او تسکین قلب د دُنیا نه الله پاک پلوځ اړه ولو کیئے کنړی۔

"همه دغه د اَمن لورے دے حمیده
که د مخ له دُنیا لورے په بل لورشر"

د جمال خان د واقعے ۱۱۲۳ھ بیکلو تخنه هم د ومره ضی در نبکاری چه داد کچه شنو بریتو هلک نیک نهٔ دے بلکه کم نه کم د یو شپه پوخ عمر او اُستاذ بیکے نظم دے او په دے اساس هم د حمید بابا د پیدائش کال ۱۱۰۰ھ شروع کید ونه ډیر وړاندے معلومیږی۔

په هر حال د حمید بابا د پیدائش کال د ۱۱۰۰ھ شروع کید ونه پنځلس شل یا پنځویشت کاله وړاندے هر رنگے له راځی. نو په دغه وجه مونږ تر هغه وخته د صدیق الله خان رښتین له اړخه د حمید بابا د پیدائش د وکړے شوی کال ۱۰۷۵ھ باندے اَمنه کوو. ترڅو چه د حمید بابا د پیدائش د کال په حقله زمونږ لاس ته څهٔ نور مستقل او اصلی مواد په لاس راغلی نهٔ وی۔

حمید بابا صرف په دوو موقعو د خپل نیک تاریخونه بیکلی دی یو د شاه رکن د تصے بیکلو تاریخ دے —

یو په زړهٔ کښے لرم د دے فکرت وو
سن یو زرسل او دوهٔ دیرش کال د هجرت وو ۱۱۳۲ھ

او بل د "شرعة الاسلام" د اختتام تاریخ دے۔ —

۱۱۲۸ھ

"وکړه ما خدایه د آئینې ته، په زر سل آته څلوېښته

د شوال په شپږ ویشتم په دا آداد خدای وکتم"

د دې دوو موقعو نه علاوه بل په هیڅ یوه موقع مونږ ته داسې مکمل او پوره تاریخونه په لاس نه راځي چه زمونږ تنده پرې سړه شي. پکار خو دا وه چه د دیوان دُر و مرجان په خاتمه او د نیرنګ عشق د آغاز یا اختتام په موقعه پوره او مکمل تاریخونه راوړي شوي وې. خو داسې شوي نه دي او دغه نیمګړتیا او کمې مونږ ته ډیر زیات محسوس کیږي.

د دیوان ځینو نورو شعرونو نه معلومیږي چه حمید بابا تر کافي عمره ژوندی وو او په اکثرو موقعو کښې د خپل بوډاوالي او زوړوالي ذکر کړې دے ـــه

"سپینې ږیرې زما عشق کوته پیسه کړو
هیڅ ئې نه قبلوي نیکلې په سودا کښې"

"چرته عشق چرته زما زاړه هډوکه
بارې باز کړو په نصیب خوئ د همې روست"

"اوس دې هیڅ د خندا خوند نشته حمیده!
چه دا وژړل په مرګ د نور نظر ولي"

"په ځوانۍ د عشق غمونو حمید زوړ کړو
په موډ ئې بیره سپینه شوه ملا غبرګه"

"که دا پلوې د بیه هیڅموک نه کا     د آزار دار سره ئې وخته کنډابی شوم"

«په پیرۍ کې ږیره سپینه کړه مُلا غبرګه
بویه قد د سرو قد عصا تر تخر ګه»

ظاهره ده چې حمید بابا تر شپږ ویشتم شوال ۱۱۴۸ ه پورې په یقینی توګه ژوندی او روغ رمټ دی. نوله دغه کبله ځینو راوړنې له اړخه د حمید بابا د وفات ورکړې شوې تاریخ کال ۱۱۴۵ ه قطعي باطل او غلط دی او مونږ له دې خوئ د وفات یو بل تاریخ متعین کول ضروري ګڼو. دلته مونږ د حمید بابا د وفات کال ۱۱۵۰ ه اندازه کوو. چې په دغه اساس به د حمید بابا د ژوندون دوره د ۱۰۷۵ ه نه تر ۱۱۵۰ ه پورې رسي او د حمید بابا په اشعارو کښې د ذوړوالي او سپین ږیرتوب د وینا او ذکر تر مخه به زمونږ دا اندازه تر ډېره حده صحیح او جابره وي.

حیرانتیا ده چې رحمان بابا سره د دې چې تر کال ۱۱۲۳ ه پورې ژوندی وی نو نه هغه او نه حمید بابا د یو بل په حقله څه لیکي. دا به محض اتفاق وي ګڼړه د پښتو ادب د دې دوو لویو نامتو شاعرانو د یو بل نه ناخبري څه ناممکنه شان ده. د رحمان بابا او حمید بابا په حقله د ماشوګګر او د خوا او ښاد کلو دا او سیدو تکو په څنګه اوس هم دا قیصه عام ده چې یو سپین ږیری سړی رحمان بابا نه تپوس اوکړو چې هغه خپل نمسی له په کوم عمر کښې واده اوکړي نو رحمان بابا ورته اووې چې لاړ شه د «ماشو» عبدالحمید نه تپوس اوکړه. و بیا شي چې عبدالحمید دغه وخت د رکوټي هلک وو او دا له د نورو ماشومانو د نرو جوارو په ټانټه

سور وو او لوبې ئې کولې چه د غه سړي پوښتنه په پوښتنه ورا ورسیدو او د رحمان بابا په ذریعه ئې ترې خپله مدعا وپوښتله. عبدالحمید ورته ووې چه د ړوند مې رحمان بابا ته سلام کړه او پس له سلامه ورته وایه چه واده په سړو کښې ښه دے او چه سړه نه وی نو په نورو کښې هم ښه دے. خو په سپینږو کښې واده هیڅ په ښه نه راځی.

واٹی چه دومره وینا نه پس حمید تپوس کوونکی ته ووے چه بس ځه لړے شه کنتره آس به دِ په لته ووهی او بیا د جوارو په تانته سور د تپوس کوونکی له تخه په منډه منډه روان شو او په خپلو لوبو سرشو.

قیصه کوونکی څرګنیږی واٹی چه هرکله دغه سړی رحمان بابا ته د عبدالحمید دغه وینا راورسوله نو پوهه شو چه حمید په ورکوټوالی کښې د کرامت خاوند دے او د دغه سړی په ډیر اصرار ئې د دغه راز کشف داسے وکړو چه په سړو کښې واده نه د حمید مراد د ځنګلي ځوانئ عبارت دے او د نورو نه مطلب د پوخ عمر او سپینو نه مقصد د سپینږیرې عبارت دے.

ددے فرضی یا حقیقی واقعے که د حمید بابا د ژوند د حالاتو څخه څه تعلق کیدے هم شی نو هغه به د حمید بابا ورکوتوالے او د رحمان بابا د پوخ عمر حالات وی. خو لکه چه ښکاره ده د رحمان بابا د ژوند د کال ۱۱۲۳ ه پورے یقینی دے او د ریشتین صیب د تحقیق او تیرنے مطابق دغه وخت د حمید بابا عمر تر شلو ویشتو کالو رسی نو آیا دا څنګه کیدے شی چه

دا دواړه شاعران د ژوند د دومره لوی دوران کښې د یو بل نه بې خبره او بې پرواه پاتې شي. ځو دا ښه معلومیږي چې یو د خپلې ګوشه نشینۍ په خوشحالۍ کښې مست وو او بل د سباسټنه و په نوراني جلوو کښې غرق او ډوب وو یا یو په خپل فن ناز او فخر کولو او بل په خپل او یا یو د عشق پرستۍ او بل د حُسن پرستۍ په درس و تدریس کښې بوخت او محوه وو. او د یو بل نه بې خبره وو.

خوځیږو! دا به د تاریخ بد قسمتي وي چې زمونږ دا دواړه شاعران د یو بل په حقله خاموش پاتې شول او مونږ ته ئې د دواړو د ژوند حالاتو معلومولو کښې یوه لویه خلاء او کمې پریښودو.

بله عجیبه دا ده چې د مومندو د علاقې یو بل مشهور شاعر معزوالله خان مومند هم د حمید بابا په حقله سکوت نه خاموش دے. سره د دے چې هغه د رحمان بابا په صفتونو نه مړیږي وے د حمید بابا غوندے اوچت شاعر په حقله یو لفظ قدر له هم نه وائي. بې پلوه که د معزوالله خان د کلام مطالعه په غور سره او کړے شي نو د کلام ژبانه برخه ئې د حمید بابا په رنګ کښې ښکاره دا. د عبدالرحمن بابا او معزوالله خان د کلام دا اشعار یو تر بله بالترتیب اوګورئ اول د حمید بابا اشعار مطالعه کړئ.

سه

چې په سپکلو پیسے ژاړم او چې شونډې
تما شه د هجر و برکوم په کور کښې

"دا تراوۀ تراخۀ کنځل د دلبرانو
تر شکرو یوڅ په سله دی لذیذ"

"بې دیار د مرلږو ستړکو چه یې ګوری
ګسنړه نۀ کا رنځور هیڅ نه جواب سخت"

"له دې هومره سرِ درده چه یې کاندی
د حمید د ے نصیحت و یٔل غرض"

"لا به کله حمید مینه لیونی کا
په کاتۀ شو ورته کسی د زنځیر بخ"

"په هغو لکه مچان خلق ښنږېږی
چه په خندۀ کښې غروی نبات ته ژبه"

"چه یې ستا د تنګې خولې تصوّر واخست
په دې فکر کښې غنچه شوه په زړۀ تنګه"

"چه یې وُلید و حمید د عشق په کار کښې
لیونی د مجنون کشر ورور دې دا"

"ځان به مړ د عشق په جهل کړم ناصحه
وا به نۀ وُړم تا ته حمید هسې پښتون یم"

"چه په هند د تورو زلفو ځوک غریب شی
دوباره نۀ شی راتلې له دې غربته"

"لیکه د تور خط دیار له مخه شوه چاپیره
ښار د اسلام کړۀ ځلې د کفر ګیر"

"بیا به نه موے بوسه له خوږو شونډو
څو دِ زړه په شان دپانو پُرخون نشی"

"پریشانی ے دَ غنچے په خیرنصیب شوه
چه گُل رُخ نه دے له ما سره یکتا"

"په شُهره شو ستا په مخ بانديے زما عشق
مسخره شو د مجنون اوُ دلیلا عشق"

"څو شبنم غوندے شوگیره سروانخلی
په بوار به دَ گُلرخ نه شی قریب څوک"

"فو ښتے دسپی له بویه لرے گرځی
له رقیب سره ئے ولے خمسوهومره"

"څو بے عقله لیونے نه شے په عشق کښے
بل هنر نشته تر دے ههس دپاسه"

"په راستئ ے دنبیل آه هسے باور دے
چه نعمام به یَم د سبکاوپس له مرگه"

"شوخے ستر گے نرگس کوزے که له شرمه
چه د باغ په لوری واړوے چشمان شوخ"

چه ناظر د ساده رویو په رخسار شم
په دا شمع پروانه غوندے نثار شم"

اوُ اوس د حمیدگ بابا دے ورکړے شوُ اشعارو څخه سلسله وار دَ
معزواللّه خان مومند دا اشعار اوگورئ

سه

"ترے سترگے اوچ گوګل کښېنه په عشق کښې
اوبه وینې په خپل کور د بېمروتې څې"
"که اشنا را ته تراخه تراخه ویېل کا
تو حلوا شه را ته دا کلام لذیذ"
"زه شهید کړمه د یار بیمارو سترګو
ګوندې نه شي خون کا وه بیمار هرګز"
"که ئې آورے که ئې نا اورے اختیار ستا دے
معزواللّٰه نه ما خودي ویئیل غرض"
"په همیشې کاندے زما والا سوپښو ته
د زنخیس شوکسي تهول په انتظار کښې"
"د سرو به لکه یم په تا انبوه وي
وهرچا نه خپله ژبه کړه ښا ته"
"ستا د تنګے څلې له رشکه له حسده
ګیږوان خیوے کړو غنچې باد صبا ته"
"په روزګار د معزواللّٰه مومند لیده شي
کښرو ورور دے د مجنون که مجنون نه دے"
"معزواللّٰه له مینې څله ما جار با سے
وا به نه دُرم مېئل ے کړے دے پښتون یم"
"نیت د جار وانه ته معزواللّٰه دهیانه وي
مه شه څوک غریب د هندوستان د تورو زلفو"

«خط له مخه دَ خوبانو چاپیر گوره
مسلمان په کافرانو کینې گیر گوره»

«مگر هاله لب په لبو دیار کیښ دی
که څوک ډوب د زړهٔ په وینو لکه پان شی»

«په گل رُخ نظر نه ما په احوال نهٔ که
دَ غنچې په دود همیشه په ټیکرنو ئیم»

«د مجنون مینه دَ خلقو ته هیڅ شوه
په ما مینه یادیږی په هر لوری»

«که شبنم غونده ژړا په هر سحر کړې
مگر ور شې د نمر مخیو تر صحبته»

«کله گوځی فو سبته دسپی له څنگه
تا په څنهٔ رقیب له ځان سره خنسو رکړو»

«په مجذوب شوم په جذبه دعاشقئ
ځان گنړم تر وارو خلقو هنرمند»

«معزوالله په خپله مینه دا یقین کا
چه به پس له مرگه هم ستا تر څنگه»

«د غم ځائے د ناتوانئ دے هیڅ گرم نهٔ دے
که له ستوگو دِ نرگس کا گوز کا تهٔ»

«چه ئے شمعه د رخسار کړه راته بله
معزوالله شوه ادس په ما بانلے سو فرض»

د پښتو ادب ځینو نورو پښتنو شاعرانو د حمید بابا ذکر کړے دے او د ځینو شاعرانو په صف کښې ئې او درولے او شمارلے دے. په دے ضمن کښې اول د کامګار خان خټک مثال اخلو.

د کامګار خان خټک دیوان په وړومبی ځل د سید تسنیم الحق کاکاخیل له اړخه په کال ۱۹۵۵ء عیسوی کښې چاپ شوے دے. دے لیکوال د دیوان په شروع کښې د کامګار خان خټک د ژوند یوه لنډه شاکه خاکه هم راکښلے ده. او د پیدائش تاریخ ئې اندازاً ۱۰۸۰ هجری او د مرګ یقینی تاریخ ئې ۱۱۶۵ هجری ښودلے دے. په یو ځائے کښې دغه نیاغلے لیکونکے لیکی "عبدالحئی حبیبی صیب او د هغه نه پس لیکونکو دے اسلوب د مشرئ پټکے د عبدالحمید په سر تړلے دے. خو تر هغه پورے د کامګار خان دیوان او د هغه د ژوند حالات معلوم نهٔ وو او په معلومو خلقو کښې د ټولو نه مشر عبدالحمید وو. حبیبی صیب پښتانهٔ شعراء کښې د کاظم خان په تعریف کښې لیکلی دی او رښتیا ئې لیکلی دی چه کهٔ حمید بابا د دهٔ نه مخکښې نهٔ وے نو په نازک خیالئ کښې به شیدا مشر ګڼړلے شو" مشری په مشرئ ده او په دغه اسلوب کښې کامګار خان خټک د عبدالحمید نه مشر دے. د عبدالحمید د پیدائش او وفات پوره تاریخ نهٔ دے معلوم دومره ثابته شوے ده چه هغهٔ "د شاه ګدا قیصه" ۱۱۳۷ هجری کښې تصنیف کړے ده. کامګار خان خټک په ۱۱۶۵ هجری کښې وفات شوے دے.... که مونږ کم نه کم اندازه لګوو نو هم د ۱۰۸۰ هجری خواؤ شا پیدائش به ئې وی او د عبدالحمید نه به مشر وی یا زیات نهٔ زیات هم عمر.

په دے اعتبار سره ددے اسلوب مشرى ددۀ حق دے،،

دے عبارت لوستو څخه صفا محسوس کیږی چه میاں صیب د قبیله پرودرئ نه کار اخستے دے. دکاظم خان شیدا په حقله دعبدالحئ حبیبی په دے وینا چه که،، حمید بابا ددۀ نه مخکښے نۀ وے نو په نازک خیالئ کښے به شیدا ددۀ نه مشر گڼلے شو،، میاں صیب بغیر څۀ دلیل اؤ ثبوت نه دحبیبی بابا تو په رد کښے وائی،،اؤ دا بښتیائے نیکلی دی،، دے نه علاوه دکامګار خان پیدا ئښتی دکال دادبیستو په لړ کښے میاں صیب څۀ خاص فارموله اؤ طریقه نۀ بنائی بلکه د،، عمر تیرشنه،، مطلب فے څخه دکامګار خان د پیدائښتی کال راؤ کاږی اؤ دا ووه پنځوس ۵۷ کالو زوړ سړے ئے بنائی. حالانکه هغه بیا وروستو تر کال ۱۱۶۵ هجری ژوندے وی.

دمیاں صیب نه مخکښے صدیق الله خان ریښتین دحمید بابا دَ پیدائښتی کال دیو خاص فارمولے لاندے ۱۰۷۵ هجری ښئیلی. چه په دغه اساس هم حمید بابا دکامګار خان خټک نه پنځه کاله مشر دے وے ددے هرڅۀ باوجود زمونږ دلږ اؤکم علم داانداز ه دۀ چه دپښتو ادب د بیشماره ډیرو شاعرانو له اړخه حمید بابا نه ،،نازک خیاله،، اؤ ،،موشګاف،، شاعرغوندے انقاب دهغه د نکلو نازکو اؤ تشبیهاتو استعارو نه ډک شعرونو په وجه دی چه د پښتو ادب بل هیڅ یؤ شاعر ترے لاترینه په دغه لړ کښے برے اؤ میدان وړے نۀ دے. اؤکورئ! کامګار خان خټک دے شاعرانه تعلی شعر کښے

اشارتاً د حمیّد بابا د مقام او درجې څومره زیات احترام او اقرار کوی۔

"چرې نه په یاد نبو عبدالحمیّد کا
په کامګار غزل دستا په مضموّن وّوې"

د کامګارخان دې شعر ته لاندې په حاشیه کښې د میاں صیب دا الفاظ هم ډیر عجیبه دی چه "د عبدالحمید په چاپ شوی دیوان کښې په دې قافیه باندې غزل ماته نهٔ مونته۔ شائد چرته قلمی دیوان کښې! وی۔ یا چرته بله قافیه باندې د مضمون اتحاد وی" په دې لړ کښې د میاں صیب په خدمت کښې دا عرض ضروری دې چه د کامګارخان د "مضمون" نه مطلب د حمیّد بابا هغه ټول خاص خیالات دی چه دیوان کښې ځائې په ځائې خوارهٔ وارهٔ پراتهٔ دی۔ او کامګارخان د خپل انداز فکر مطابق د هغه ټول خیالات د لته په دې غزل کښې را ټول کړی دی۔

د دې هر څهٔ نه ورا خوا عبدالحمیّد بابا او کامګارخان دواړه ځینې غزلونه داسې په قافیه ردیف هاله کښې .... پیاله کښې وغیره) په یو نمکه لیکلی دی۔ د هغه موازنې نه به صفاٌ بریښی چه د حمیّد بابا کلام څومره ښکلے شائسته نازک او تشبیهاتو نه ډک دې او نازک خیاله او موشګاف شاعر کوم لقبونه چه ورکړې شوی دی هغه په ځائې او صحیح دی۔ د هغه درجه او رتبه د وئ ته هم عصر د چه په هغوئ کښې کامګارخان ختک هم شامل دې) او نورو زړو پښتنو لیکوالو او شاعرانو ورکښلې ده۔ نهٔ چه دا وس وخت شاعرانو په دغه القابو

ښاغلي دي. او موږ له قابلو او محترمو مشرانو د دغه فیصله اتفاق
او آمنه په سرسترګو قبلول پکار دي.

د سوویت یونین د پښتو لوی عالم او محقق ښاغلي عارف عثمانوف
په خپله یو مقاله د کامګار خان ختک په باره کښې لیکي چه:

"تسنیم الحق کاکاخیل د کامګار په دیوان باندې یوه
علمي مقدمه لیکلې ده او په هغې کښې د کامګار په باب د
معلوماتو ورکولو په ترڅ کښې یوه مسئله مینځ ته راچوي
او غواړي چې حل کړي. ښاغلي کاکاخیل وائي د پښتو
کلاسیکي ادبیاتو په سانحه کښې کامګار خان ختک په مضمون
بیکلو او نازک خیالۍ کښې ورومبی مقام لري نه چې
عبدالحمید یا شیدا. په دې دلیل چې کامګار تر عبدالحمید
مخکښې ژوند کولو. د بلې خوا نه څیړونکي او محققین لکه
حبیبي او رشتین په دې عقیده دي چې د پښتو په
کلاسیکي ادبیاتو کښې مضمون ایجادونکی شاعر چې په
نازکو تخیلاتو او ژورو باریکیو کښې نور ترشا کوي
هغه عبدالحمید دې او کاظم خان شیدا، علیخان او نور
په دوهم مقام لري. د دې موضوع په باب بحث کول
تر اوسه هم نوې دې. یو علمي او مستند فیصلې
ته د رسیدلو د پاره یو لړ اوږدو څیړنو ته اړتیا
لیدل کیږي. زما په عقیده د یو شاعر د مقام

معلوم ول د هغهٔ د مخکښې زېږېدلو او یاد هغهٔ د ژوندانهٔ د دور په اساس یو علمی قضاوت نهٔ بلل کیږی او نهٔ شی کولے په حساسو او حقیقت غوښتونکو قناعت ورکړی[1]،،

د پښتو ادب ځینو نورو ډیرو پخوانو او زړو شاعرانو هم د حمید بابا د شاعرئ تعریف او ستائنه کړے ده چه د حمید بابا د لوړ مقام او اوچتے درجے اظهار ترے کیږی. د دغه نه د څو شاعرانو خیالات را نقل کوو.

د حمید بابا هم عصر شاعر قلندر اپریدے وائی چه

"د پښتو ژبے په شعر په دا خپله زمانه کښے
پرے دِ نهٔ شو بے حمید[2] قلندره بل حریف
د فضل د سبحان په قلندر د شعر وشو
دا وایه سبب فصیح بلیغ وو د ماشو"

د محمد بیاض بیاض خیال دے چه

"په رحمان عبدالحمید کړو سر په کور کښے
شنه مضمون کوته به ورلاندے کوم شاعر شی

احمد گل د لمی وائی چه

---

[1] شهباز اخبار. ۲۳ جون ۱۹۷۰ ء

[2] "اوس د فکر تو ره واخلو حمید ده: چه ده: چه نشته په پښتو کښے څوک حریف (دُر و مرجان)

"د حمید غوندې مئین په برات نهٔ یم
کلوکیږې ستا د تورو زلفو خیال دے"
او عبد الله پوپلزئی د حمید بابا مقام داسې ښکاره کوی:

"د پښتو په شعر هیڅوک نهٔ پوهیږی
د حمید د نیرنګ راز غواړی خو نشته"
"د عبد الحمید د ژبې غوندې صفت کړم
پیدا نهٔ شی به پښتو کښې بله ژبه"
"د حمید د باریک خیال هوس برهم کړم
نهٔ خوار غوندې یم بیت ئې شورجان دوب"

د تمدن دمار دسیے او سید ونکے شاعر شمس الدین کاکړ هم د حمید بابا د کلام نه ویر زیات متاثره ښکاری او په ځینو شعرونو ئې سم د حمید بابا د کلام ګمان کیږی لکه د حمید بابا دیو غزل داڅو شعرونه واخلئ

خط په مخ د صنم راغے کهٔ سپو ږمئ شوه په هاله کښے
داغ ئې عاشق په ځګله کښے زیب کاکهٔ ژاله شوه په لاله کښے
لکه د عندلیبي مرغئ په سست دام د سلو لو مو
هسے رنګ پریشانو زلفو کښیستم په کشاله کښے
سر تو پا په غم د هجر لکه نے سوړے سوړے کړم
ځکه یم مدام داهسے رنګ په آه او په ناله کښے

او ددے پہ مقابل کښے شمس الدین کاکړ وائی۔

؎

خط پہ مخ دصنم زیب کاکۂ سپوږمئی شوہ پہ هالہ کښے
ښکلی ئے سینۂ ایسنی پہ خُدم کښے کہ شبنم پہ سرۂ لالہ کښے
لکہ نخښتے چہ مارغۂ وی پہ اُمید د خلاصیدۂ وی
کسبیبوت زړۂ زما پہ زلفوکۂ مسکین پہ کشالہ کښے
سرتو پا سُورے سُورے دے چہ لہ غمہ ئے ژګیرۍ دے
دا زما زړۂ لکہ نَے دے تل پہ آہ و پہ نالہ کښے

دشمس الدین کاکړ مخمسی اګر چہ دموضوع پہ لحاظ دحمید بابا مخمسی نہ مختلف دے ولے دواړه مخمسہ پہ یوه زمکہ لیکلے شوی دی. خو دشمس الدین لیکلے مسدس دموضوع او مضمون پہ لحاظ دَ حمید بابا ترکیب بند نظم تہ ډیر ورتہ او نزدے دے. دحمید بابا بند ګڼنہ

؎

.. پہ منزل بہ ئے صبا کوره څوک ملۂ وی
نۂ پوهیږم چہ بہ ساده وی کہ بہ غلۂ وی
پہ څۂ شان بہ شکستہ زهیر پہ زړۂ وی
لہ نخښے بہ ئے دَ زړۂ تخمہ پہ خُلہ وی
سزاوار دهرستم دهر پیغوریم
چہ ے یار پہ سفر تللے زۂ پہ کور یم

دَ شمس الدین کاکړ دمسدس دا بند موازنہ کړئ ؎

ګوره چې څوک به ورسره مله وي
په همراهۍ به ددوی په خندا وي
دا رفیقان به ددوی په پله وي
خدایه زده چې مله او که به غله وي
دې به او ده وي دوی به په تله وي
له ستومانۍ به نه وروښېږي.

د پښتو ادب یو بل عالم او صوفي شاعر قنبر علي خان (۱۱۰۷ ه ـ ۱۲۰۷ ه) په خپل دیوان کښې ځای په ځای د حمید بابا د اشعارو ت... تضمین جوابي غزلونه وئیلي دي لکه چې په خپله وائي

؎

"د حمید جواب قنبر علي تکرار کا"
"بد او نه مني دلبر زما کانه"
دا جواب قنبر علي حمید ددې غزل کا
"نه کا یار باندې په هیڅ د مهر پېښه"
دا جواب قنبر علي هغه کا چې عبدالحمید وئیلي
"خط په مخ د صنم راغی که سپوږمۍ شوه په هاله کښې"

قنبر علي خان د حمید بابا د یکي یو مشهور مخمس په تضمین جوابي مخمس لیکلي دی آخیرني بند ئې په دې ډول دی ؎

"چې د ښکلو په غمزو سره شهید دی
د هغو دې عاشور او ورې عید دی

دا جواب چه د مومند عبدالحمید دے
د خوبانو د غوږ د نو مرواريد دے
چه په غوږ ئے وی د عقل زنګولے"

د حنان بارک زی ر ژوند ۱۲۵۰ هجری خوا وشا) د شاعرئ زیانه
...خه د حمید بابا د اشعارو په رنګ کښے رنګ دے۔ اوخپل ځان د
...میډ بابا د سبک پیروکار او خوشه چین شماری او د احترام او
...در په سترګو ورته ګوری۔

لکه

" که هر څو شعر بلند وائے حنانه!
د حمید مو شګاف نه کیږی جواب"
" د حمید د شعر بحر نه حنانه!
یو څو څاڅکی دی لویږی لمی ستا بیان"
" و حمید نه هیڅ دے ستا شعر حنانه!
د کبلی د مست شیر سره څه دی"
" د حمید د خوش نظمئ په زراعت کښے
دا حنان لے دے د شعر خوشه چین "
" د حنان سینه نو خطو تورسکاره کړه
که سینه وه د حمید د دوکان د منبکو[۱] "

---

[۱] دے شعر تهول غزل د حمید بابا د غزل په مزکه دے۔

مرزا حنان د حمید بابا په زمکه اؤ مضمون ترکیب بند او مخمسی نظمونه هم لیکلی دی. خوهغه مقام ورته حاصل نهٔ دے کوم مقام چه د حمید بابا دوه لیکلی نظمونو ته حاصل دے.

---

# دَ جمال خان واقعه

دَ جمال خان دَ مرګ یو داسې دَرُناکه اَوْ المناکه تاریخي واقعه ده په هیڅ یو انسان دَ دې حقیقت نه انکار نهٔ شي کولې چه ظلم او زور زیاتي نتیجه تل هم دغسې وي اَوْ همیشې له په خپل وخت راتلو ظالم دَ مظلوم دلاسه خپل سزا خوري. دغسې واقعات په دُنیا کښې اکثر پیښیږي چه ظالم دَ خپل زور اَوْ طاقت لاس دَ غریب ګریوان ته اوږد کړي اَوْ ښیرې پاکې ئې کړي ولې غریب دَ ډیرې بې وسئ اَوْ بې کسئ له وجې ښیرې ویرې تهتر نیولې خاموش پاتې شي اَوْ صبر نه کار واخلي خو کله ئې په وَس اَوْ بس برشي نو هغه تورې او دوهي په هر ترړۍ ئې دَ شین آسمان شرق شي دَ ظالم اَوْ مظلوم، دَ حاکم اَوْ محکوم، دَ غریب اَوْ امیر، دَ مزدور اَوْ سرمایه دار ترمینځ دغه فاصله، خلاء اَوْ ورانه ختهٔ نوې خبره نهٔ ده. بلکه دا لرې والې اَوْ کوکه دَ ماده پرست انسان ترمینځه دَ عمرونو راسې راروانه ده

او ټوخو چې روحانيانو او د خدائے پرستۍ ته داګوڅېدلے نه وي
دغه خان خوښے لالچي او بے صبره انسان د شګو په کمر د مرګ په
غاړه ولاړ وي او بے وسه انسان ته کنده کنستونکے يو ورځ
په خپله دغه کنده کښے ته ورا ړناوشي او نوم نشان قدر ئے بيا تے
نه شي۔

سه

سپک به پا سي د هغه مسند له سره
چې په سر د غريبانو يو بار کښيږي

د جمال خان د مرګ واقعه د دے خبرے څرګند ثبوت دے
چې څوک د څو پيسو روپو له خاطره د خپل قوم په مرۍ چاړه راکاږي
د دنياوي جاه و منصب په لالچ کښے قومي مفاد د خپلو ذاتي مفادو نه
قربانوي نو صحيح ده چې د څه وخت د پاره خو هغه لکه د خسترۍ د
دولت برې بوګۍ او د پيريانو د دولت په پوړ ټيوسي ولے لږه لحظه پس
بيرته په زمکه راپرېوزي او د هغه د غه نشه او غرور د خلقو د پښو
لاندے ريزمريز او ذره ذره شي د ظلم او غدارۍ په وجه سړے څو ورځو
له خو ضرور خان، ارباب او نواب شي او خلق ورته سرټيټي او لاس
په نامه ودريږي خو کله چې د غه مظلوم قوم سر راپورته کړي
نو خپله بدله څه په داسے شان واخلي چې تر پيړو د پيړو پورے
خلقو ته ياده وي۔

د يو روايت له مخه د جمال خان د غه واقعه د بايزيد انصاري
او اخون درويزه د تحريکاتو د اثر لاندے شوے ده. جمال خان چونکه

د پیر تاریکي ربایزید انصاري) د تعلیماتو په حق کښې وو نو له دغه کبله خلقو دے کافر او مرتد گنړلو او دے ئے لکه د پیر تاریکي رپیر روښان) د خپلو مُنکرو او هم خیالو ټخه په اور کښې وُسوزولو.

یو بل روایت دے په جمال خان په ډیر زور زیاتي ماشووال د خپل کلي ماشو نه وُشړل او د هغوئ په کلي ئے قبضه وُکړه. ماشووال کله په سر د کلي نه دادیزو په لارې د غزنو نو خوا کانو ته روان شول نو هر کله په ادیزو ته ورسیدل نو هلته دے د پاره لږ ایسار شول دادیزو د خلقو په پوښتنه دوئ د جمال د ظلم قیصه په ډیر دردناکو او غم لړلو ټکو کښې بیان کړه. ادیزوالو چه د جمال د ظلم دا داستان واؤریدلو نو د هغوئ ګړے ئے په خپلو کورونو کښې واړوُلے اؤ د شپے په تورہ تیارہ کښې دوئ ټخه په پټاوُ مشتوزو رمسرنړوے) ته ورغلل. د جمال خان کورته ئے ټخے اغزي ورکڅ ا رکړل او اور ورته ئے ورته کړو. جمال خان او د هغهٔ ټول ټبر ئے په دغه اور کښې د ډیر مال او اسباب ټخه وُسوزول او د هغوئ په زمکو او کورونو ئے قبضه وُکړه.

وئیلے شي چه د مشتوزو زمکه دا لکړنړا نو دراتک تروخته د ماشووالو په قبضه کښې وَه او د ‹‹ پیکے ›› ملک به ئے ورته وے. بل دا هم وئیلے شي چه جمال خان د خپلو انو او دوستانو مرستهٔ غوښته او ټولو خپلوانو اؤ ګل خان غوندے دوست ورټخه د ملګرتیا او امداد د ملا وُ تړله. نو دغلته دده یوسکه ورور دا سے هم وُه چه

هغهٔ دَ ښهٔ معمولی ناراضګئ اوْ خفګان په وجه ددهٔ ملاتړله راغلو اوْ ددهٔ په سمته اوْ تکلیف کښې ئې خپل ښهٔ اوْ خیروْلیدو.

ځینې مشران وائي چه خدرزی په حقیقت کښې هم دَ دهٔ د سازش په وجه په جمال خان راغلی وو. بهرحال د جمال خان د مرګ نه پس د هغهٔ دغه ورور ډیر غریب اوْ مفلس شو اوْ دَ خانئ اوْ سردارئ د اوچت منصب نه راپریوتو. اوس چونکه دهغهٔ ټول ټبر اوْ خاندان اوْ بیا په تیره تیره د جمال خان غونډې جابر ورور ئې وژلے شوے وو اوْ هیڅوک داسې نهٔ وو چه دغه سخت اوْ د تنګسې وخت کښې ئې ددهٔ ښهٔ مدد اوْ په کار راغلے وے نوله دغے دبے دَ خلقو دخندا اوْ ټمسخو شو اوْ د خلقو ترمینځه ئې وخت تیریدل ګران شانته شو. اوکورئ ددغه وخت چا شاعر ددهٔ په حقله ښهٔ ښهٔ ټپه کړے ده.

په دَ جمال ننګه دِ سنه کا

اوس دو کوه دتیرو فصلو کلنګونه

دَ ځینو روایاتو ترمخه د ماشوخیلو دغه شړلے شوْو ګروه د ماشوګګر کلی ښخه پراوْ کړے وو اوْ د ماشوګګر خلقو د خپلو ورونړو ملاتړ کړے وو. ددغه روایت په نزد عین په هغه موقعه په د جمال خان دخوئې جلال خان وادهٔ تیار وهٔ اوْ نیمځ د کور د ننه په تنګ ټکور اوْ سند رو بوخت وے. دوئ دخوا وْشانه راغونډې کړې ښځې اَزغئ دَ جمال له کوره تاوْکړل اوْ اورے ورته

کړو. واقعا چه په د غم او کړ کېنې د دغو ټولو اسباب، جمال او د هغه د کورنۍ سوزېدونه علاوه ډېرے پېښوانئ جنيکۍ هم سوزېدلے وے. په د جمال د حوټے واده کښے په ښنکلا او رنګینئ ښاستة کړے وه.

او د غمے ډېر جمال نه د بدلے اخستو په ځائے ډېرے بېګناه او بے آزاره ترښتخ او او نور اک شوے او د خوشحالئ په ځائے د غم او وېرسند دے په فضا کښے پورته او خورے شوے.

وائی چه هرکله د ماشو رماشو ګکو، خلق په چپاؤتلل نو د مېرماما د داړه تګوره خواتاتو ۔ ځا منو د غنو از غو په ځائے زړند ے د دوه پلونه په خپلو او پړوکړل او د جمال د کور بندے تمبے کښے په پلونو راښعولو دړے دړے کړے. دکوځئ د غمه بهادرئ دوئ دواړه د نظره کړل او په خو ورځو کښے دننه دننه دواړه ورونړه مړه شول او دا مثل نرعمره عمره د خلقو په خُله پاتے شو چه:

"خونه ړد د مېر ماماخیل شته"

د مېر ماماخیل کندے اوس هم د د غه واقعے یادتازه کوی. په د ماشو په کلی کښے د دغه وخت نه یو یادګاری نوم را روان دے.

دوست محمد خان کامل مومند په خپل کتاب "رحمان بابا" کښے دیو روایت له مخه دا حکمره د سرکوی په سرګنړی. هغوی لیکی چه:

"جمال خان په د مومند و د مشترزو کلی وو. د خواوشا

دکلو په خلقو به ئې زياتی کوله . او هغوئ به ئې د خپلې برخې سرکړی و هلوته نه پريښول . اخبر د مومندو، د ماشوخيلو، مانړ وګکرو او اديزو د کلوعالم را ټول شول په مشترکه توګه ئې پېياړ وکړه او د جمال خان کورته ئې ور ورته کړو په هغه جګړه کښې سره د خپل ځوئ، خيلخانې او ملګرو ووژل شو ."

ميجر راورټي په خپل کتاب

SELECTION FROM THE POETRY OF THE AFGHANS

( د پښتنو له شعرو انتخاب ) کښې ليکي چه :

" د ناصرخان د کابل د صوبيدار په زمانه کښې په ۱۱۲۳هـ / ۱۷۱۲ع کښې جمال خان په د مومندو له خدرزی څانګې وه د خپل اولس په مشرئ مقرر کړے شو . او په دے دوران کښې د خپل يو عزيز عيسے کلے او لوټيلو او وران ئې کړو هم په دے شپو ورځو کښې د جمال خان د ځوئ جلال خان واده هم کيده ونکے وه او صوبيدار ناصر خان د واده کښې د خوښ د پاره له خپله طرفه دوه زره روپئ هم راليږلے وے . د واده په شپه چه جمال خان دوئ غافله وو، عيسے خپل عزيزان او ملګرى را غونډ کړل او د جمال خان دوئ په کلی ئې پېياړ وکړو . هرڅو که جمال خان د دے پېياړ د جواب د پاره تيار نه وه خو بيا هم هغه

مقابلے تہ راؤ د تلو اؤ پہ جنګ کښے د ړ وبل کید و تہ
پس ئے د خپل کور پہ چار دیوارئ کښے پناہ وا خستلہ
عیسئے کور تہ اور ورتہ کړو اؤ د جمال خان ټولہ کورنئ
اؤ د لہ چہ ترښځے ماشومان انتہا کسان وو، پہ اور کښے ژوندی
وُ سول"

پہ هر حال اصلی واقعات هر رنګ لہ چہ وی، وی بہ، ډیرے
ځلے ډیرے خپرے. خو دے حقیقت نہ پہ هیڅ حالت ئے اړولے نہ
شی چہ د پښتو تحواہ بہ سیمہ کښے د غم ونخت دے واقعے پہ غټہ نا
غټہ وجہ ډیر لوئے اهمیت لرلو اؤ د پښتون قوم ذهن ئے بے اثرہ
پریښو دے نہ وو. د دغہ ونخت کړ دو پښتنو شاعرانو ته د دے
سانحے نقشہ پہ خپلو تخو کښے ضرور راکښلے وی. خو ترا وسہ موږ
تہ د دوئ د غہ کلام پہ کوتو راغلے نہ دے.

نن پہ دے واقعہ موږ ته د پښتو ادب دا و چتے پائے د
درېو شاعرانو رحمان بابا، حمید بابا، اؤ عبدالقادر خان خټک
کلام موجود دے. چہ د دغم ونخت د پښتنو د قبیلوی حالاتو پہ
لړ کښے ډیرے اعلی اؤ نادرے تاریخی نمونے دی. د دے نظمونو نہ
اګرچہ د دے واقعے بنیادی وجہ خو نہ بر خیرہ کیږی و لے
دومرہ خو ضرور ښکارہ کیږی چہ د جمال خان د لاسہ خپل
قوم ته لکہ چہ ډیر زور زیاتے شوے وی اؤ د غہ ظلم پہ د ۀ خپل

ا؎ رحمان بابا ص ۳۰۵-۳۰۴ دوست محمد خان کامل

قوم ته لار ښوولې وي. د رحمان بابا د کلام نه دومره قدر له جوړیږي
چه دا واقعه د دنیا د سود و زیان په وجه شوې ده او بس بلکه چه
وائي

«هزار حیف دے چه داسې رنګې چارې
واقع کیږي د دنیا په سود و زیان»

د رحمان بابا چونکه د دے نه بغیرے نخنه څه خاص غرض او مدعا نه وه
چه دا واقعه وے او په څه وجه وشوه. د هغه غرض خو صرف
دومره قدر له وو چه دا هر څه وشول نو د دنیا د سود و زیان
او د نفس و شیطان په مکر او لمسه وشول او دغه وجه ده چه
درویشان د دے مردارے او مکارے دنیا نه لرے او یو خواته بے
تعلقه ګرځي.

د رحمان بابا په نزد د غه وخت څه چه شوې دي دا د جمال خان
نخه زیاتے دے. او انسان له په کار نه دي چه په بل انسان دومره
بے اندازے ظلم وکړي. رحمان بابا د دے واقع د پېښېدو وله وجوهاتو
به پوره پوره خبر وو ځکه چه هم د دغه علاقے او سید د لکے وو
خو هغه چه د جمال خان په مرګ خپله ژړا ژړلے ده نو وجه ئے دا ده
چه د جمال خان که څه قصور وو، نو وو به، خو د هغه د دوست
ګل خان او د بال بچ او خپلو خپلوانو هیڅ ګناه نه وه چه بے ځایه
دا ور نوراک او خشاک شول. رحمان بابا د دوئ په مظلومیت
بے حده خفه او غمژن ښکاري او د دوئ په حالت رحم خوري.

ــــ

"څه رنګ شوخ وو هغه او دا هغه خلق
چې ئې مونږ کړو د دا وشکو په باران
د نمرود چارے به وُ ليدے په سترګو
چې ئې اَ چول د اور وته شبيان
عالم وائي چې قيامت به په څه وي
وُه ليد ما په يکشنبه په دا دوران"

خو د رحمان بابا په مقابله کښې حميد بابا غير جانبدار نه بلکه د خپل قوم وطن او عجيبه حالت د خلقو په پړه او دا تهتيک ولاړ دے ځکه چه د دے واقع تعلق نيغ په نيغه د هغه تمام قبيلے، کلولئ دورولئ، ترېورولئ، خپلوئ او د ړلے د ناستو پاستو خلقو څخه وو د غه وجه ده چه هغه دا واقعه ظلم نه بلکه جائز او روا ګڼړلے ده۔

ــــ

"لکه لوئے کړے ليوه بچه د درباندے تر پلی
حال زمونږ او د جهال هم دا مثال که
لکه ګرم چې په حسن رض حسين رض يزيد وو
هسے ګرم په مونږ جهال وو که څوک سوال که
دا چې شوی دی له هسے نا چاړ رئ
لکه سو يه په سپی تر پلی انفعال که
نا خبر له حاله هر چه وائی نبا ئی ؛ خبر دار مُدام په عذر قيل وقال که

خوبد نام په دا جهان خدائے[1] خدرزی[2] کړه[3]

ګڼړه هره چار په خلقو خپل اعمال که"

دَ حمید بابا په نزد هر مشر چه د خپل قوم بد غواړی او د هغهٔ حال به هم لکه د جهان په شان وی ځکه چه دا سے مشر هغه شاخ ربیبی په کوم چه هغه ناست وی د هغه خلقو لاس او پښے پرې ګوی کوے چه دهٔ لوه دُشمنی څخه د جګړے په وخت په کار را تلے شی. څوک چه د بد سرو مال او برخ ته خواهشی کوی هغه هم خپل مال و سر او برخه بائلی. څوک چه بد ته کوځ کنی هغه په خپله هم دغه کوهی ته ورا پرتا وُ شی. او څوک چه د حد نه زیاتے پښے غزه وی د هغوی حال به هم لکه د جهان غوندے وی. هغه بېړله خبره ده چه سړی له

---

۱ ماشو خیل، ماشو ګګر او ادیزی په مومندو کښے دویزی او په دویږو کښے خدرزی دی خیل مومند، او داؤدزی (داودزی) د غوری ځامن دی ځکه دے دریواړو قبیلو ته غوریاخیل وائی. غوری د کند، کند د خوشبون او خوشبون د سړبن ځوئے وو.

۲. پیږو ربی) څخه نزدے یو کلے په خی رزیر و یادیږی او په دغه کلی کښے ترننه ځینے میشته خانان خپل تعلق ماشو ګګر سرهٔ تړی او وائی چه مونږ په اصل کښے د ماشو یو. دا سے معلومیږی چه د ماشو د خانانو خپله دغه بانډه لکه چه د خپل مورث اعلیٰ خدرزی په نوم آباده کړی وی

۳ دوست محمد خان کامل د خپل کتاب "رحمان بابا"، ص ۵۶ په حاشیه کښے لیکی چه "خدرزی د ماشو ګګر یو کندے دے"، دا صحیح نهٔ ده ځکه چه خدرزی په ماشو ګګر یا ماشو خیل وغیره نومے کاو کښے چرته هم "کندے" یا "محله" نشته دے!

خدائے پاک فتح اؤ کامیابي ورکوي کتره ذرګونو نه سلګونو چرے هم میدان وړے نه دے. د بل جامه اغوستل اؤ حق خپلول سخته غلطي ده اؤ بیوقوفي ده د نیکۍ جواب پکار ده چه په نیکۍ وشي د نیکۍ په بدل کښے بدي کول سړه کار نه دے."

اؤ بیا د حمید بابا دا آخیري شعر څو که عین چه د رحمان بابا د خفګان نه ډک نظم ته اشاره وي اؤ د هغه د خفګان برخلاف ئے خپله خوشحالي ظاهره کړے وي ؎

"دا دوړونه دے د کور دي حمیده،
یو د بل په مرګ ملال کړي بل خوشحال که"

د حمید بابا کلام لوستو نه معلومیږي چه د ده ټولے همدردئ د بیا وؤ اؤ حمله کوونکو څخه دي. اؤ د ظالم سردار اؤ مشر په دے انجام زښت خوشحال اؤ شادان دے. د موقع دا چشم دید ګواه که هر څو غیر جانبدار پاتے شوے نۀ دے ولے بیا هم مونږ د هغه د غه بیان قبلوؤ چه د جمال خان له اړخه په خپل قوم بے انتها ظلم شوے دے اؤ له دغه کبله قوم د موقع موندو په وخت خپل بدل څۀ په داسے شکل اخستے دے چه خپل تهتړے د یؤ کس دوؤ په مرګ نه بلکه د ټول ټبر د بیخ بنیاد په ویستو یخ کړے دے.

د رحمان بابا اؤ حمید بابا د خیالاتو کتو نه پس اوس راځؤ په د خوشحال خان خټک د ځوئے عبدالقادر خان خټک خیالات هم وګورو کوم چه هغه د دے واقعے د پیښیدو په لړ کښے ښکاره کړي دي

اؤ څوک چه په دے واقعه بے حده خوشحال دے.

؎

کښے هسے کار ښکاره شی چه غمژن شی
ګاه کا رونه په سبب د شادمانۍ دی

نن نسیم د پښتنو رله لوریه راغے
خو وینا ئے راته کړی زبانی دی

چه نن شپه مومند د ډوهلے تورے
په ډهلے نه افغان نه تورانی دی

په ښکوے د مظلومو اعانت کا
خدائے ئے مل شه دا لښکرے رحمانی دی

لاله زار ئے شګفته په سره آثار کړه
هر چه دا بهار نه ګوری زندانی دی

د باړے اوبه ئے سرے لکه شراب کړے
د سړپن کانړی همه ارغوانی دی

همیشه پښتون مومند وے دروند کړے
که سبب ئے د خفت میر افغانی دی»

د عبدالقادر خان ختک د کلام نه جوړ ښتینږی چه مومندو دا
د غیرت او ننګ کار کړے دے. هسے خو په ټوله هر پښتون د ننګ
خبرے کوی ولے داسے ننګیالی ډیر کم وی چه د خپل سر سودا د
ننګ په میدان کښے او کړی او د نر توب او خوانمردتوب تور

ادوهي.

ـه

"چه په طمع د دنیا کاندے جنګونه
دننګ ورک شه که رستم داستاني دي
یوسفزي چه زورآور وینی ننګ پریږدي
حویصان دي خامعان دي نفساني دي
په خندهر پښتون د ننګ خبرے کاندے
ننګ هغه کا چه ناني نه دي جاني دي
زرناني شه صدقه ترجاني خوانه
پښتون ډیر دے اماخه په کارناني دي
دا متل دے تیغ په اصل غوخول کا
د مومند و تورے اوس نه دي کافي دي
افریدي شنواري جنګ په غوښونو کاندي
غور یاخیل په میدان جنګ کامیداني دي"

د عبدالقادرخان ختک دے نظم د دوه شعارونه خو بیا دا صفا ظاهریږي چه جمال خان لکه چه د مخلو د طرفه د مومند و مشر یا سردار ټاکلے شوے وي او هغه د خپلے سردارۍ او مشرۍ په نشه کښے دومره مست وي چه د مخلو د خاطره د خپل قوم هیڅ پرواه نه لري او د حکومت د خوشحالۍ د پاره په خپل قوم هر قسم ظلم او ستم روا کښي.

ـه

"یکا نه زلمیو غږ وَبله وکړو
په وَهه فلانی دَ هه هندوستانی دی
دَ مغل له دے سبکو پروا مه کړه
اتفاق ئے سره نشته ځان ځانی دی
په قسم ئے میادا چه باوَر ئے کړے
سوګندونه ئے دا مونه شیطانی دی"

لنډه دا چه درحمان بابا په نزد دا واقعه دَ دُنیا په سُودو زیان شوے ده. دحمید بابا په خیال جمال خان ظالم وو اَو ډیره زیاتی ئے کوله اَوْ دعبدالقادرخان خټک دوَینا مطابق جمال خان دَ مغلو له اړخه سردار اَوْ مشر وو اَوْ مظلومو پښتنو هغهٔ ته دخپل ظلم سبق ورکړو.

ددے دریوارو شاعرانو دکلام نه دا نتیجه هم اخذ کیږی چه دا واقعه دهاړ په میاشت کښے دا تیــوار په شپه پیښه شوی ده. جمال خان سردار دهغهٔ ځوئے جلال خان اَوْ نور آل و اولاد د جمال خان وفادار دوست ګُل خان په اور کښے سوزولے شوی دی. جمال خان هم دمومندو قوم نه دمغلو له اړخه چونړ شوے سردار وو. اَوْ ټول قام دمغلو یا دَخپل ذاتی عمل په وجه دَهغهٔ برخلاف وو.

درحمان بابا، عبدالحمید بابا اَوْ عبدالقادرخان خټک دریوارو دَ نظمونو دنفسی مضمون نه صفا بریښی چه کوم جوش

او جذب په دے دریوا پو نظمونو کښے موجود دے. نو دغه دے واقعے دلیدو او اورید و سره سم د شاعر د ذهن او ماغزو پیدا وار دے چه پۀ دغه تأثر د انسانی همدردئ رحمان بابا) بل د علاقه پرستئ (حمید بابا) او بل د قامی دشمنئ (عبدالقادر خان خټک) له مخه د زړۀ د کومی نه د اشعارو په جامه کښے بیان کړے دے.

اوس راځو چه د روایتی او عینی شهادتونو نه علاوه دا واقعه د تاریخ په رڼا کښے د خوشحال خان خټک لمسی د اشرف خان هجری ځوئے افضل خان خټک په قلم لیکلے ټکورو په دغه وخت یو مستند تاریخ او لیک دے.

افضل خان خټک د جمال خان دواقع په حقله په خپل کتاب تاریخ مرصع کښے لیکی:

"پس له فوته د اورنګ زیب بادشاه جمال خان مومند او بعض ظاهربین کوتاه اندیشی ورسره سر په شورش پورته کړے وو. په مومند و کښے موسریزے وو او موسریزے په مومند و کښے کمزورے په ده. ترهئ ئے داوو چه په دا شورش کښے تر ما نا مه ناموس وشی ربابی به بیا موموم. په دامیان کښے ډیر افراط تفریط ورځنه وشو هرکاله چه په سن زرسل ۱۱۲۳ دوه ویشت صوبه دارئ د دار الملک کابل په مه د ناصرخان شوه. پیښنو رته راغے اربابی ئے ورکړه. اما دده کړدے په نیجوا د ناصرخان تر سردارئ یا په صوبه دارئ کښے ئے د ضونان کړے وے، د ناصرخان په خاطروے په خپلے اربابئ کښے ئے

کلے د عیسیٰ موٗمند هم ؤوا هه. عیسیٰ مومند په خپل خیل کښے زور ور
دے. بوره ئے د ناصرخان سره ؤکړه. د مغل په ویرانئ کښے د پښتانه
خپله مدعا ده مصرعه ع

"هر طرف که شود کشته سود اسلام است"

په دا میان کښے د جمال د خوئے د واده کار پیښ شو. ناصرخان
دوه زره روپئ هم په طریق د انعام ورکړے. نور عیسیٰ په قوم د مغل
خوئے ورپسے کړه. هغه شپه په ئے د خوئے واده وو، د سبکره سره
ور روان شو په کوړئے ورانئے. جمال له دے هسے آفته غافل وو. ئے
نه وراووت. تاب ئے د جنګ رانه ؤړو. زخمي کوړته ننوت. عیسیٰ
ئے په کور اُور پورے کړو. پکښے ؤسوه. آنتیا کسه نو تښتې وړوکی هلکان
د واده هم په هغه کور کښے ور سره ؤسول. دا واقعه په سن ۱۱۲۳ھ ز رسل
دروېشت وه. خدائے د له دے هسے آفته امان ؤکا"

---

نمله عیسیٰ په ختهٔ ماشو خیل مومند وو "تاریخ مرصع".

# نیرنگِ عشق

"نیرنگِ عشق" د مولانا محمد اکرم په فارسۍ ژبه لیکلې مثنوي
ده. مولانا محمد اکرم د پنجاب په علاقه کښې گجرات ښخه نږدې د
ډکلي کنجاه اوسیدونکې دے. غنیمت ئې شاعرانه تخلص دے اوُد
پاپی اکیډیمۍ په کوشش د پروفیسر غلام رباني عزیز له اړخه
په کال ۱۹۵۸ء کښې په فارسۍ ژبې پښتو سره درونډ دیوان هم چاپ
شوید ے. مولانا محمد اکرم کنجاهي د نیرنگِ عشق مثنوي په کال
۱۰ هجري کښې ختمه کړے ده.

ـــ

چو شد ختم این کلام سینه پرورد
خرد تکلیف تاریخش همی کرد
عیان گشت تاریخ نو آئین
ز گلزار بهار فکر رنگین"

د ابجد د په حساب "ګلزار بهار فکر رنګین" ۱۰۹۶ هجري
راځي. دا مثنوي د پنجابي اکیډیمۍ له اړخه په کال ۱۹۶۲ ع په لاهور کښې
چاپ شوي ده. دا منظومه قیصه تقریباً پنځلس سوه ۱۵۰۰ شعرونه لري
چه په ابتدا، کښې د قیصې شروع کیدو نه اګاهو یو سل یو نوي ۱۹۱ شعرونه
مناجات، نعت، منقبت د شیخ عبدالقادر جیلاني رح او حضرت شاه صالح محمد
او اورنګ زیب بادشاه مدح او تمهید څخه تعلق لري. او قیصې
شروع کیدو نه تر خاتمې پورې دیارلس سوه پنځه ۱۳۰۵ بیتونه جوړیږي
د دې په مقابله کښې د حمید بابا ترجمه کړي نیرنګ عشق کښې مناجات
نعت، منقبت، مدح او د تمهید اشعار نشته. او د قیصې په سر او
آخر کښې د شاعر د ځان دوه بابونه ور شامل کړي دي.

د مولانا محمد اکرم غنیمت د قیصې د دیارلس سوه پنځه ۱۳۰۵ اشعارو په
مقابله کښې د حمید بابا د نیرنګ عشق د بیتونو تعداد څه کم اولس سوه ۱۷۰۰
دې. او په دغه ترتیب د حمید بابا ترجمه د اصل نه تقریباً څلور سوه ۴۰۰
بیتونه زیاته ده.

د یکښې هیڅ شک نشته چه د غنیمت مثنوي په خپل وخت د هند
ایران په خاوره یو لوئي غږ او درز پیدا کړې وي او د دوستو نه
او د شاعرئ شوق لرونکو به ئې ځانته راکښلي او خوشنود کړي او د
خود نو دوه علاقو په نسبت لکه چه د دې شهرت د پښتنو په سیمه
لږ زیات وي او په دغه وجه حمید بابا د دې کتاب د ترجمې د اګر
بار په سر پورته کړې وي.

دا قیصه دا ور حصه زما صاحبه
د کنجاه محمد اکرم کړه فارسي ژبه
خواه نا خواه داغه هوس چه ئے پښتو کړم
بانده ئے کومه هنګامه د پښتنو کړم"

د نفسِ مضمون اؤ مرکزي خیال په لحاظ اګر چه دَ ذیلِ نګِ عشق داستان به ځینې کسانو ته خوښ نۀ وي اؤ دا قسم قیصے به دَ معاشرے دپاره نېه اؤ فائده مندے نۀ ګڼړي. خو کال دا دے چه دا مثنوي دا اورنګ زیب په دورِ حکومت کښې لیکلے شوې ده. دَ چا د بادشاهت په دوران کښې چه په هر قسمه نشر و اشاعت سخته پابندي وه چه دَ اخلاقیاتو د معیار نه به لانده اؤ د معاشرے دپاره به نقصان ده اؤ ضرر رسان وو.

خو معلومیږي دا چه دا مثنوي خو یا دَ ایراني ادب دَ اثر لانده لیکلے شوې ده چه د غزنویانو دَ دورنه د قاچاریانو تر دوره پورے ئے د محبوب دپاره د "تذکیر" صیغه استعمال وله. یا سیاسي اړخ لري چه پښتانۀ ظالمان، قاتلان اؤ ډاکه مار ثابت کړي اؤ اورنګ زیب د دوئ په وژلو بېګناه اؤ په حقه نبکاره کړي. یا دغه وخت د دے قسم مینے اؤ محبت په رواج طنز دے اؤ یا دا دے غیر فطري اؤ بے حاصله مینے مخه حقیقت لوري نه دا اړول مقصد وو. د غنیمت مثنوي او د حمید بابا ترجمه شاید چه دا اخروي مقصد تحت وي او د "المجاز قنطرة الحقیقت" په مصداق د مجازي مینے په ذریعه حقیقت پلټ

متو به کول وی. لکه چه دواړه بالنی تنبیه وائی.

سه

میادا هیچ دل بے عشق بازی
اگر باشد حقیقی یا مجازی
مجاز آئینه دار روی معنی ست
سرای جاده هم در کوی معنی ست"

سه

مجاز هر چرته کار ساز د حقیقت دے
نور دے پاتے په دا کار کښے ځنه دقت دے
مینه بو به حقیقی که مجازی وی
میدان پیبره که په جنګ که په بازی وی"

پائیدار او ژوندے ادب هم هغه وی چه د ژوند عکاسی او ترجمانی اوکړی او د ماحول د سینه او بد دواړه خاکه په صحیح طریقه راکاږی او د خپل وخت د رواج او دود د ستورو له مخه پرده پورته اوکړی او روښانه روښنیا ئے نبکاره کړی. دا مثنوی په دے حیثیت تاریخی اهمیت لری چه د دغه وخت د خلقو رواجاتو او تمائیلاتو طرف ته اشاره کوی او د دوه نیم درے سوه کاله مخکښے خلقو احساسات او خیالات په ګوته کوی.

د حمید بابا د نیرنګِ عشق ترجمه بیخی او قطعی آزاده ده او لفظ په لفظ ترجمه نه ده. بلکه خو به داوه چه د قیصے د دغه مرکزی خیال هم حمید بابا د خپل فکر او خیال بنیاد ګرځولے دے او د دے

دیناضرورت پیښېږي نهٔ وے چه دا کوندے د بل مضمون او خیال څخېله ژبه کښې را ترجمه شوے دے. حقه خبره خو دا ده چه د حمید بابا د ترجمه په تشبیهاتو، کنایاتو، اشارو او تمثیلونو د اصل نه په څو چنده خوندور او مزه ناکه ده او هغه هومره محاسن او خوبیانے په اصل کښې نشته لکه چه په دے ترجمه کښې دی.

دلته د ترجمے د رے قسمه مثالونه راوړے شي چه اصل سره سمون خوري.

۱

"شبے از چشم آهو آفریده
ز شوخي بر رُخ عالم دویده
شبے بازلف لیلیٰ دوش بردوش
شبے با طالع مجنون هم آغوش
شبے دودِ چراغش زلف سُنبل
نهاده شبخون به فوج نگهت گل
درآن شب داشت از بے تابی دل
چراغ کشته رقصِ مرغ بسمل"

۲

"یوه شپه په نے سیاهي د سترګو نور وه
روشنائی ئے د جهان وړے په زور وه
د هوسو له شو خو سترګو وه رو پیښته
له شوخۍ په مخ د خلقو وه زغا ښتلے

د سیند له تور و زلفو خوا په خوا وو
د مجنون له بې خوابئ بې پروا وو
هغه شپه له بې خوابئ د شمع دِل
پرکیدهٔ لکه مارغهٔ په نیم بسمل
د چراغ لوګے ئے زلفے سُنبل ګون وو
چه ئے کړے په نکهت د ګُل شبګون وو»

دویم مثال

«شکست دل عیان از رنګ رویش
ز بې صبری بخود این ګفتګو یش
نمی دانم که بو داست آن پری زاد
کزو در شیشهٔ دل آتش او فتاد
نمی دانم چه ګرمی داشت این مے
کزو هم رنګ برق آمد رګ وپے
نمی دانم که این تیر از کجا جست
که زد بر سینه ام نا جسته از شست
نمی دانم که این درد از کجا خاست
که رفتم از خود و این درد برجا ست
نمی دانم که زد این زخم بر تا و
که هوش از دل شد و دل رفت از کار
نمی دانم که این آتش برا فروخت کز و دل خون شد و خون در جګر سوخت»

ـه

دا خدنګ دِ دې دَکوم لښکر لېندې
چې ئې اوسپېردې زما دَ زړه پردې

دا دَ کوم میخانې کرم شراب دی
چې مې هسې عقل و هوش بانډ خراب دی

هیڅ مې نه زده څه تا ثیر لری دا مې
چې دغم رنګ هم مې رونق کړه دزړه توې

نه پوهیږم چې دا درد په څه نماځې دې
چې ئې زړه نما وړې ایرې کړم دې په خاندې

نه پوهیږم دا دَ کوم سرود نغمه ده
چې ئې ایښې په شعور زما تغمه ده

نه پوهیږم چې په کوم ګناه نیوه شم
چې کباب غوندې په اور کښې دا ئم سوځم

دیم مثال

ـه

نه شعر این انتخاب عشقباز یست
تراوشهائی زخم جانگداز یست

نه شعر این شورش امواج خونست
حدیث از لب زخم درونست

نه شعر این نالهٔ خونی نوایسیت
شکستِ شیشهٔ دل را صدایسیت

ـہ

"شعر نه دے دا خوناب د زخمي زړه دے
یا د تلے وروستے دم له ځلے د مړه دے
دا زور نه ده د کباب د اور د پاسه
که پړی ده نغښتے ځي په څو لباسه
یا نغمه د نسیم بسمل مارغه د ځلے ده
یا مجنون ته معمه ښکلے لیلے ده
یا د ویښو اباسین وهلے موج دے
یا له شماره د حیرت د تلے فوج دے"

لکه چه ؤ وئیلے شول. د حمید بابا دا ترجمه بالکل آزاده ده او په ډیر کم حالت کښے دا اصل نقل دے. ځینے ځایونو کښے د شعر دیو لغت، چرته د شعر دیو مصرعے او کله دیو تشبیهه ترجمه ده دیو یا د څو شعرونو د ترجمے نه پس دغه سلسله منقطع یا آزاده شی او د حمید بابا د فکر زور په غورزنګونو اؤ ځپو شی. قیمتی ملغلرے او جواهرات بهر ته ؤ غورځوی. لږے لحظے له اصل ته متوجه شی نو بیا د ر آزاده ترجمه شروع شی. دغسے د دے ترجمے د اشعارو زیاته برخه د حمید بابا د خپل ذهن پیداوار او اصل نسخه ئے هیڅ تعلق نشته دے په دے ضمن کښے د ډیرو زیات ډیکلی ښکلی اشعارو نسخه دا یو څو د نمونے په طور ؤ کورئ.

ـہ

"هغې توبه د احتساب له ویچو پوچو
د غرور اس ئې واهه په کوچوکوچو"

"جمع زړه ئې ترې ترې لکه غوټئ شو
نوند توسن ئې لکه خر په ختیه بوټئ شو"

"له فریاده دا اوړ سوي زړه اور سوي
په ناما په ځیرئ زړه له سوزه پوي"

"اوس دا ستا د قضا نما لا لنه
که ئې وژنې که کوي د عشق پا لنه"

کښینا ستو ئې کښینول شال آفتونه
پا سیدوئې پاسول شال آفتونه"

"په آهو پسې تنها لکه آهو لاړ
په آرزو د کونه او بو سینده لاهو لاړ"

"هغه راز چه زړه له شونډو ساته پټ
شو خو سترګو یو په یو وایه غوټ غوټ"

نیرنګ عشق پښتو ادب د پاره د لغاتو، محاورو، متلونو او تشبیهاتو یوه لویه پنګه او ذخیره ده. د فارسي ادب دې شاهکارته حمید بابا یو نه زړه وړنکې رنګین لباس ور اغوستې دې او د شاهد او عزیزه مینې دې داستان ته یو لازواله ژوند وربخښلې شوې دې د غنیمت د مثنوي یو خصوصیت دا دې چه کوم ځائې د شاهد نوم راځي نو هلته د شاهد د نیاست په تعریف کښې یو څو کلې ضرور

راوړی. ولې دحُسن تعریف خو د حمید بابا نه غواړه دچا دشاعرۍ په اصلي موضوع او روح هم دحُسن تعریف دے. دحمید بابا په ژبه دشباهت دښاښت په تعریف کښې دا دوه مثالونه راوړل کافي دي.

سه

"یا خو حور دے په ښائست یا ښاپیرے دے
نه غلط شوم په دا دواړو کښې تیرے دے
له حجابه ئې په مخ اوده هي پرتي
نه شي هیڅ دده د برق د شوخۍ فرق
لعل ئې شرم کا له شونډو په یمن کښې
ګل ئې سهم خوري له مخه په چمن کښې
خوله ئې رمز له تنګۍ لرې ترانې کا
په نیم حرف ئې د طوطۍ ژبه ګرانې کا
چه ئې شرم کا له سترګو دهر دهر
څکه نه کوي د بیا هوسۍ په ښهر
چه دننه کا چمن ته په ښیو پښه
په خدمت ئې سرو ودرې په پوښه
چه ئې ووینې هنګام د حیا ګرم
شوخې سترګې نرګس کوزې کا په شرم
تل دده د مستو سترګو له ګا ئله
په عوض د دِ بنیو مېنځ څي زما دِ له

هسې زیب کا سم قامت د ګلعذار
لکه سور په وینو تیغ په کړی ګذار
په محراب کښې ئې د ورو څو لکه هلال
هر زاهد په سجده پروت وی خسته حال"

دویم مثال

"جلوه ګر چه په چار سو ترند آهو شو
تمام ښار په هاهو ورپسې هو شو
هر سړی به ئې د حسن په لیدو
لکه موم د عشق په اور ویلې کیدو
د هر چا چه به نظر د ده په مخ شو
بې اختیاره به ئې زړه پسې تخ تخ شو
هر پلو چه به ئې وار کړو له ستر ګې
اور به بل شو د پرهیز په لوندې درګې
هر قدم ئې ګوټل زړونه د دلبرو
په مثال لکه دانې د چڼو کوترو"

د غنیمت د مثنوی یو خاص د غور قابل تاریخی نکته دا ده چه د غه وخت د مغلو د لاسه تنګ ناست پښتون نه یوازې دا چه د مغلی حکومت خلاف په خپله خاوره بر سر پیکار وو بلکه د مغلو په مستقل قبضه علاقه پنجاب باندې ئې هم چپاونه جاری وو.
غنیمت په خپله مثنوی کښې د پښتنو د آزادئ د جد و جهد تذکره

اوُ ستنځ سپورے دیلی دی. اوُ په سپکو لفظونو ئے یاد کړی دی. نو که اوکتے شی نو د مغلی حکومت له اړخه د پښتنو په خاوره د غم قسم ظلمونه اوُ زور زیاتے نو چنده سیوا اوُ زیات وو. دا سے حالت کښے د پښتنو له لوری جوابی کاروائی کیږی که څهٔ لږ ډیر زیاتے شوے هم وی نو هغه محض خپله آزادی برقرار ساتل اوُ دُښمن نه بدل اخستل وو. د پښتون مغل دُښمنی د بابر بادشاه د وخته راسے شروع وَه اوُ د اورنګ زیب بادشاه په زمانه کښے انتها ته رسیدلے وَه. د دواړو روغه اوُ جوړه هیڅ شانله ممکنه اوُ آسانه نهٔ وَه. لکه چه حمید بابا وائی

"کم دا ډوره په ژبه حرف د پیوستون
جنګیدهٔ سره هردم مغل پښتون"

---

# شاه وګدا

شاه وګدا د فارسي ادب د هلالي نومي يو شاعر په فارسۍ ژبه ليکلی کتاب دی. بدرالدين هلالي چغتائي (۸۴۴ ه تا ۹۰۶ ه) د علي شېرنوائي د دربار شاعر وو. علي شېرنوائي د هرات د سلطان حسن بيقرا وزير وو چه علم و فن سره ئې ډېر شوق لرلو او ډېر عالمان شاعران او مصوران ئې د ملک بهر او دننه راغونډ کړي وو. هلالي د ژوند په آخره کښې هرات نه بخارا ته تلی وو. ده د دغه شاه وګدا کتاب په ازبکۍ ژبه کښې په اوږدو بحرونو د "شاه و درويش" په نامه هم ليکلی دی او په دغه ژبه کښې ئې قيصه په لنډو ختمه کړېده.

حميد بابا د فارسي "شاه وګدا" دغه کتاب په پښتو ژبه اړولی دی. د يوې ژبې شعري کتاب د بلې ژبې په شعر کښې اړول څه ډېر ګران او مشکل کار دی. خو حميد بابا د دغه کتاب څه په داسې ډول ترجمه کړې دی چه د ترجمې په فن کښې ئې ځانله يو

ښکاره ۱و څلنده مقام پیدا کړے دے. د کتاب لوستونه معلومیږی چه څنګه ځایونو کښے خو ترجمه تحت اللفظ یا لفظی ده. ولے زیاته برخه آزاده او د پښتون ماحول مناسب ښکاری او د خپل ځان نه پکښے هم ډیر زیاتوالے راوستے شوے دے. د دے ترجمے او د نورو ترجمو شوو تیصوترمینځه یو غټ بیلتون دا دے چه د نورو قیصو تعلق عموما د واقعاتو سره تړلے پاتے شوے دے او د دے قیصے تعلق د واقعاتو په مقابله کښے ډیر زیات منظرکشئ ته دے. د تشبیهاتو او کنایاتو یو لوئے امبار په دے کتاب کښے راجمع دے. او که هرڅو دیوے خبرے یا یو واقع بیانولو کښے د حد نه په هورته مبالغه شوی ده ولے د دغه مبالغو د پښتو ادب لوستونکو ته د لفظونو، محاورو، متالونو، تشبیهاتو او اشاراتو یو زبردسته ذخیره ورکړیده. او د قیصے نه زیات د دے کتاب هم د غه لوئے اهمیت دے. او کو د ټی د سپرلی راتک دیو شعر نیم په ځائے څومره په پرانستی متې بیان شوید ے او د کوم قسم تشبیهاتو او کنایاتو رنګینے جامے ورا غوستے شوید ی.

ے

چه بهار محض د پاره د نشاط  ځائے په ځائے و غوړوه سبز بساط

برڅو ہے ستونہ ے د غنچے ګلِ خندان شوے
د شبنم سپینے غو تهٔ پکینے دندان شوے
سرے او شنے جامے تیارے د غنچے شوے
جلوه ګرے د چمن پټه پټے شوے

په نسیم کړے د خزان له بنده خلاصے
د ښا خونو په ټالونو شوے رقاصے
ګل پرده بیرته له مخه د صبا کړه
طائفه ئے د بلبلو په غوغا کړه
هسے رنګه شو لاله د غوټۍ پیدا
لکه لعل شی له کانړی هویدا
هسے پروت ګل نرګس دوپه لاله کښے
لکه عینِ مخمورکسی په پیاله کښے
لاله ټل که هسے اور په هوروتور کښے
په ئے وسوو خپل کبکوړے په تنور کښے
مست په میو شوله شوق هسے بلبل
په ئے سرے ستړګے کاته په مخ د ګل "

د حمید بابا د "شاه و ګدا" داکتاب همیشه خیل په ورومبۍ ځل په نومبر ۱۹۵۷ء کښے د خپلے یوے ورځوکے شان تبصرے ځخه چاپ کړے دے. پښتو ادب ته په کوم نورے ډیرګنړے د حقیقت نه لرے او فضول قیصئ راغنوتی دی په د غه کښے دا یوه قیصه هم شامله ده په د حقیقت نه ځځه لرے غوندے ښکاری او مرکزی خیال ئے د یو داسے خاکے یا پلاټ نه ګیرچا پیره چورلی چه په هیڅ شانله ممکن او د عقل دمنودو نه دے. د یو ښا ئسته شهزاده دومره پریوتل په یو فقیر ځخه یارانه دوستانه وساتی او د یو "ګدا "

دومره زړه ورتیا په دبادشاه په لور مئین او عاشق شي، دمکانو نه بهرخبره ده. خودا او دپښتو ادب دا سې نورې قیصې په دفارسي ژبې نه دا ترجمه شویدي او یا دفارسي ادب په ذریعه یونان نه راغلي دي. دبادشاه یاشهزاده دلاسه څه نه منونکې کار کوي چه هغه لوڅ هم دحکومت خاوند کولې شي. او دبل خوارغریب یادغه رتبې نه د کم کوزسړي کار کیدې نه شي. کله خوشهزاده پیریانو دیوانو څخه جنګیږي. کله دبدرجمالې ښاپیرئ په عشق کښې سرګردانه او پریشانه ګرځي او کله دکوه قاف څوکو ته هغه طوطی په پسې خیژي په دهغه دمعشوقې زور کیږ او قبضه دار دیو ساه پکښې وي او ددغه طوطي چنغرک تاو ولو څخه دیو یا خو مړ شي او یا دده تابعدار شي. ددغو لو سوز ولو دیو څخه سره حاضي شي او هر ډول مت له ملا تړلې ور دریږي. وغیره وغیره د پښتو ادب ددغه وخت نیکونه دي. په حمید بابا غوندې پوخ لیکوال او شاعر هم په ماحول کښې د دغه غیر ممکن قیصو دا اثر نه بچ پاتې نه شو او دشاه ګدا قیصه ئې د غلام محمد اخونزاده په وینا په ۱۱۳۷ هـ کښې دفارسي نه هم په نظم کښې را ترجمه کړه. دپښتو دغه قیصه په لنډو ټکو کښې په دې ډول ده.

" په یو عاشق مزاجه غوندې فقیر دیو باغ په خوا کښې تیریږي په ناساپه ئې هلته دخسرو بادشاه ښکلې لور ته نظره شي په دغلته سیل له راغلې وي. فقیر ددې ښکلې شهزادۍ په لیدو څخه سره عاشق شي. فقیر په دې حالت شهزادۍ ترس ورځوري او پخپلو خاصو مقربانو کښې ئې شمار کړي او ځان سره ئې د مکتب ملګرې کړي.

کله هم د خدایه نور ته غواړي هیله د خپل معشوق خواله ورسي او
شام هم د سکالي حسین شهزاده د سبق او خوا ملګرے شي. د شهزاده
هم ورسره کافي مینه پیدا شي او شاید دا ځکه چه ،، عشق اول در دل
معشوق پید ا شود ،، په څو مره وختونه تیریږي دومره د دوئ
مینه هم زیاتیږي خو لکه ځنګه چه هر کل سره اغزے وي د غه رنګ
هر عاشق سره یو رقیب هم تړلے وي. د دوئ دواړو په مینه کښې د
شهزاده د پلار له لوري د دغه ښار مقرر حاکم اغزے او رقیب شي او د
دوئ دواړو ګډ اخلا او بیلتون دا ولي. ،،ګله ،، له ښاره بوتې ووېستلے شي
او دوه په درخاورے په سرشي آخر دیو څه خوا ونیسي او باقي پاتے عشق
زړے ژوند تیر ول هم د غلته خوښ کړي. ولے څه وخت په شهزاده د
د غلته د یه حالت او پریشانئ استوګنه خبر شي نو د ښکار په بهانه
هلته ځان ورسوي. او دغسے په خپل عاشق پیرے اچول شروع
کړي. خو دا راز تر ډیره وخته پټ پاتے نه شي او د خلقو ترمینځه ګنګوسے
شروع شي

په ښاه ولے له ګدا یه سړ یار دے          د شاهانو له دے کار شرم عار دے

او دغسے د خلقو پیغورونه او طعنے د شهزاده مخ ته یو لوئے غر شي
او د خپل عاشق ګدا ، په نه لید د ډیرے طبع پریشانه او کمزورے شي. چه
خسرو بادشاه د خپل ځوئے دا کمزورے او پریشانه حالت ووینئ نو د ملک نو
طبیبان ئے علاج له راو غواړي. طبیبان په یو اتفاق د اصلاح او مشوره
ودکړي چه شهزاده ته موده د ښار نه بهر سیل له استول پکار دي

د طبيبانو د رائے مطابق شهزاده بهر واستولے شی او لږه موده کښے صحت بيا مومی. د غلته "گدا" سره شاهدانم ليدل کتل وی او ډير بل په ديدن نه مړيدل. خو د دے دوا په وصاد قانو دغه يو ځائے کيدل هم تر ډيره وخته پائے نه شی او د سپلاس دا ړنه شهزاده ته ښار ته د واپس راتلو خطر راشی او بے له ديله د پلار په لور روان شی ولے پلار ئے د خوور ځو ژوندون نه پس په حق ورسی او دے دهغه په ځائے په تخت کښينی. ځمه وخت په "گدا" د شهزاده د تخت نشينۍ نه خبر شی نو د شهزاده کتو له راشی شهزاده هغه سره ډير په قدر وژرتن پيش راشی ولے هم په دغه وخت کښے "شاه" ته يو زبردست دښمن سر راپورته کړی. خو د "گدا" په دعا هغه برے بيا مومی. دا دواړه مئين تر ډيره عمره ژوندی وی. خو يوه ورځ دا سے هم راشی چه دوی دواړه په يو ځائے ئ ځق ورسی او د غسے په دے دنيا د دوو رښتونو عاشقانو مينه خاتمه ته ورسی."

---

# شرعة الاسلام

„شرعة الاسلام» د حمید بابا څلورم لیکلے کتاب دے. او د
شاه وګدا» او „نیرنګِ عشق» نه پس دریم منظومه ترجمه ده
ے کتاب ایکی یوه معلومه نسخه د کابل پښتو ټولنے څخه موجوده ده
ے دغه نسخه هم پوره او مکمل نه ده ځکه چه دیوے بلے موضوع د
ے پانړو نه پس یو دیرشم [۳۱] فصل شروع کیږی او د دغه درے پانړو
علاوه نور د سر پوره دیرش فصلو نه نشته دے. ټول کتاب
پن پنځوس [۵۶] فصله دے. خو داسے معلومیږی چه د دغه شپږ پنځوسو
لونو ترتیب هم برابر او صحی نه دے. دکتاب یو دیرشم فصل
ان د سنتو د خوراک څښاک دے. بل فصل په بیان د خوړلو اشیاو
پسے د مرغانو د خوړلو ذکر او بیا د میوو او سبزو د فائدے او
صان په حقله ذکر دے. د دینه پس فصل په بیان د سنتو د پوشاک
ی او بیا پنځه دیرشم فصل په بیان د کور سازولو د سنت دے.

شپږ[٣٦] دیرشم فصل په بیان د سنتو د تلوله کورنه ۱۰۶ او اووه[٣٧] دیرشم فصل
په بیان د سنتو د ادب د خبرو دے. و لے دلته یو ځل بیا د شمار نمبر
خطا شی او د اتۀ دیرشم فصل په ځائے صرف فصل په بیان د سنتو
د خوب کولو شروع شی. بیا ور پسے فصل په بیان د سفر د سنتو
د دوستۍ، د حق همسایه او د نکاح په حقله دے. او اووه[٤٧] څلویښتم
فصل د رنګارنګ مسائلو په بیان کښے دے او ور پسے فصل په بیان د
احسان له مور و پلار دے. پنځوسم فصل د حق د مریونو. یو پنځوسم[٥١]
فصل په حق د حقوقِ عام. دوه پنځوسم فصل په حق د ځناورانو.
درے پنځوسم[٥٣] فصل په حق د امر معروف څلور پنځوسم[٥٤] فصل په
حق د قضا کښے. بیا فصل په بیان د جهاد کولو کښے. شپږ پنځوسم[٥٦] فصل
په بیان د سنتو د رنځ و بلا او د آفات دارو دوا کولو په حقله دے.
بیا ور پسے "ذکرِ فضیلتِ یٰسین" راځی چه د سورة یٰسین ځینے آیاتونه
د مختلفو تکالیفو لرے کولو د پاره راوړے شوی دی. د دے موضوع
نه پس یکاره چه کتاب ختم شوے وے. خو د غه نه وروستو هم دوه
فصلونه نور بیا لیکلی دی چه یو فصل په بیان د پوښتنے د رنځور دے
او دویم اخیرنے فصل په بیان د خاتمے د کتاب دے. د کتاب د اخیری
پاڼے د مخښکینۍ صفحے د حاشیے دا څو شعرونه ورکوری چه حمید بابا
د دے ګران کار سرته د رسولو په لړ کښے په څومره ښکلی انداز د الله
تعالیٰ شکریه ادا کړیده وائی ؎

په دا مرسته ما خپل عقل    ورکور کړے دے په نقل

حمد و شکر بے حسده — تالره خدایه احده

په ذکرو په ماپیرزو — په خپل فضل دا آرزو

دَم قدم ے سنا توفیق — په دالاره کښے شه رفیق

راته تاکړو په احسان — دا مشکل منزل آسان

لکه په اوو یلے شول دا کتاب هسے خو په حقیقت کښے شپږ پنځوس [۵۶] فصله دے. ولے د سر دیرش فصلونه ئے نشته دے او نه ئے د پوره نه ورکړے شوی فصلونو ترتیب برابر او صحیح دے. خو بیا هم دا کتاب د پښتو ادب د پاره ډیرلوئے اهمیت لری ځکه چه په دے موضوعاتو شاید که چا د شعر په جامه کښے داسے نیک کړے وی او بیا د دے کتاب غټ کمال خو دا دے چه د لنډ بحر متن سره سره حاشیه هم د لنډ بحر په شعر کښے ورکړے شوے ده او په هره صفحه د متن د شعرونو په نسبت د حاشیے شعرونه یو په دوه جوړیږی او د مخکښنی ځنه واخله تر دوه سوه شپږ دیرشم [۲۳۶] اخیری ځے پورے هم د غه سلسله روانه ده چه په دغه شکل د دے کتاب د شعرونو تعداد زرګونو ته رسی او د حمید بابا د فن د کمال داد ورکوی.

دد ے کتاب یو اهم خصوصیت دا دے چه د دغه ټولو شیانو ذکر د حمد یٔو او د قرآن د آیتونو په رنړا کښے دے او د هر څیز ذکر په ډیره وضاحت او روانه ساده ژبه کښے بیان دے لکه د میوو او سبزو په بیان کښے د ،،کاږه وږلنو،، په حقله دا څو شعرونه اوګورئ

ے

دی کاږه وېلنی عام — دا الیاس، خضر طعام
دا الیاس د خضر منید دے — وے هر دواړه سره خوئیږے
زیاده وی باد په خوراک — هم که زړه نباکه پاک
ډرکه وی جزام جنون — ورکوی فهم و فنون
بهوی بند پڼئ او بول — صافه وی د معدے ډول
کا قوت باه ته نفعه — هم پرے شی د توخی دفعه

او د دوستئ د فصل په بیان کښے د کتړو شعر و تونه دا درے شعره ئے هم لږ ږکورئ وائی ـه

که دوستی نهٔ کا تر سر څوک
و به نهٔ خوری ئے بر څوک
په کوشش ساتلے بویه
یارانه صافه خوشبو یه
چه تر مرګه پائنده شی
بهرمند ئے بنده شی"

د دے کتاب خاص د توجه وړا خیرنئ صفحه ده چه د دے کتاب د اختتام ورځ او کال ښئي او دا ثابتوی چه حمید بابا د میجر راورټی د وینا مطابق په کال ۱۱۴۵ هجری کښے وفات نهٔ ووَ بلکه د شپږ ویشتم شوال کال ۱۱۴۸ هجری پورے هر رنګ له ژوندے او روغ رمټ وو. د دے کتاب لکر چه وړاندے و ویلے شول د آخیر نو درېو پاڼو ځائے لږ شان شلیدلے دے نو له دغه کبله

د دې کتاب د کاتب په حقله څو پوره وضاحت نه کیږي ولې دا دومره ښکاره ښکي چه، "تمت تمام شد کتاب شرعة الاسلام از دست فقیر... شمس الدین" مونږ دپاره کافي دي چه د دې کتاب کاتب څوک شمس الدین نومې سړې دې. اوس راځو د کتاب د آخیرني مخ د متن هغه شعرو نه هم وګورو چه حمید بابا د دې کتاب د خاتمې په وخت لیکلي دي. ؎

ډې ژغورې زما ربه!
د شیطان له دروه ډېر به
دا یو ځل په داد ښا نخلې
په بېداد مهٔ کړې ښکنځلې
په قلم مې ده عطا؛
سم کوې حرف کړې د خطا
مسلط مې کړې په ګنج
نا پسند ئې کوه هر سنج
په نظر مې د حاسد
کړه مال مهٔ کړې کاسد
ما عاجز دې خپل کړې
تا قادر خدای ئې ته سپارلې
په خپل حفظ کښې ئې ته ژغوره
د هر چوکس له پېغوره

تا را کړے راته پرېږده
د امان مهر پرے کېږده
په دعا حسنما کمین
په خپل فضل کړه آمین
خاتمه ے کړه په خیر
چه له خیره نهٔ شم غیر
وُکړه ما خدائے ته داتینبته
په زر[۱۱۹۸]سل آتهٔ څلو یښته
دَ شوال په شپږ[۲۶]وېشتم
په دا داد خدا ئے وُکتم
کهٔ کا خدائے دا فیروزی
د حمید فقیر روزی
شه په حمدو په درُود
خدائے نبیان دَ خدائے خوشنوُد
دے ختم شو کلام په ثنا صلوٰۃ سلام

# خودي (پښتو)

خودي اؤ پښتو دواړه هم معنی ټکي دي. څنګه چه د اُردو اؤ فارسۍ ژبې ویونکي "خودي" وائي هغه ته پښتانه په پښتو کښې "پښتو" وائي. پښتو نه یوازې د یو ژبې نوم دے کوم چه د دے ژبې ویونکي "پښتون" وائي بلکه دا د ژوند هغه ټولو اړخونو سره تعلق لري د کوم تعبیر چه اسلام د هغه سنه اخلاقو په نوم کوي کوم چه انسان د ترقۍ او چتې پوړۍ ته رسوي. پښتو عینِ اسلام دے اؤ اسلام عینِ پښتو ده نو هله پسته چه پښتو په رښتیا پښتو وي. هسې څه نه پښتون ویئل اؤ د پښتو کار نه کول د پښتو بې قدري اؤ بې عزتي ده. زه اؤ ته هله مسلمانان یا پښتانه یُو چه د اسلام یا پښتو څه کار وکړو. د پښتو غلط استعمال د پښتو گناه نه ده زما اؤ ستا گناه ده چه په غلطه طریقه مو استعمال کړه. لکه مثلاً دیُو سړي ورور دُوه ژړے

شي. نو هغه اکثر د خپل ورور بدل د قاتل نه وانه خلي بلکه د هغه د خاندان یو داسې فرد نه واخلي د چا چه د دغه قتل سره هیڅ تعلق نه وي او قطعي بې ګناه او بې خطا وي. د پښتو په نزد خو پکار ده چه دې دغه قاتل وړومبے معاف کړي او که داسې نه شي کولے نو چه د قاتل ورور یا خپل ځو نه وژني او د خپل ورور بدله د قاتل د ورور په ځائے هم د قاتل نه واخلي.

څو که څنګه چه د تصویر دوه اړخونه دي دغسې د پښتو هم دوه اړخونه ښه او بد دي او لکه چه ښکاره ده پښتو د پښتون په ژوند داسې خوره وره پرته ده چه د پښتون د ژوند د ترقۍ او ناکامۍ راز هم د پښتو په لمن کښې نغښتے پروت دے څکه نو د پښتو د لارے نه چه څوک بې لارے شي نو بل ورته طعنه ورکوي چه "څه مړه! دا د پښتو کار دے. دا ستا پښتو ده. یا تا کښې خو هډو پښتو نشته دے" او دغسې د پښتو د لارے نه یو بې لارے شوے د پښتو سره نیغ لارے ته بیا راګرځولے شي. د پښتو دا ضابطې به یو لیکلے شوي دول نه دي خو یو نامعلومه وخت نه د پښتون قوم ترمینځه په دستور په عمل کښې را روانې دي. او دوي ئې پابندي کوي. دغه وجه ده چه د نه لیکلو په وجه څینې وخت څینې خلق د پښتو استعمال د خپل مقصد حاصلولو د پاره په غلطه طریقه او کړي او

---

ـله قاتله ځان غلط کا په قصاص کښې د مقتول په ځائے بل ډو وژني په خامخا کښې (نو استعمال [illegible])

د پښتونو ناجائزه استعمال د ډیرو خلقو د پاره د مصیبت او تکلیف باعث او ګرځي.

د پښتنو ژبې هروېونکې او د پښتو ادب هرلوستونکي باید چه د پښتو په فلسفه سه پوهه او سېد لے وي او په دے موضوع څه وېيل بې ځایه ګڼلي وي. خو دے څه قدر وېنا نه مراد د "پښتو" تکي لږ شانله وضاحت وو او د پښتو فلسفه بیانول ترے مطلب نه وو.

حمید بابا په خپل کلام کښې د پښتو او خودئ په کټرو اهم خونو د خپل خیال اظهار کړے دے ولے دلته ترے مونږ صرف د خودارئ هغه اړخ اخلو د کوم مقصد چه انسان نه په خپل مټ د ګټې ډبل په آسرئ د نه پاتې کېدلو او په محنت مشقت د ژوند تېرولو نبوده ده. او حقیقت هم دا دے چه کوم داسې سړی ژوند هم وېږ ژوند کښې د سوه حساب نه وي څوک چه په خپله نهک کار نه کوي او د بل لاس ته ناست وي او تن آسانه ژوند تېروه وي. د حمید بابا په نزد داسې سړے دلته غوائي په مثال وي چه بې د قصاب د چړے نه بد هیڅ غوره علاج کیدے نشي. ~

د جمله بد یو سرتن آساني ده
خوښ دے شي لته غوائي په قصابانو

حمید بابا لکه څرنګ چه اسلامي اصول دي، د محنت، خوارئ او مشقت قائل دے او د سوال او منت روزئ ته

په سپک نظر کوری . ځکه چه سوال او منت دسړی نوری او پښتو ته کونړی او نکوی او د بے غیرتئ او آرام طلبئ زوند ته ئے لیواله کړی .

په دے حقله حمید بابا په خپل دیوان کښے ځائے په ځائے ذکر کړے دے او مونږ ته ئے د محنت او خوارئ په حقله یو داسے زبردست سبق پریښودے دے چه ترڅو پورے مسلمان او پښتون ژوندے وی نو د حمید بابا په قبر به دد عاګانو او شاباشئ پنډونه ورآستوی .

دلته دا یو څو شعرونه ئے د سوال ، منت او طمع د غندنے او د محنت او مشقت دستائینے په لړ کښے د نمونے په طور وړاندے کوو .

سه

"په تنها کے د محنت لوی په لاس کښے
هغه نه کوری په خُله د کوهر مخ "
"په محنت سره ټوک ټوک سړے پروت نشه دے
نه ولاړ په دروېزه د یوه ټوک "
" د حمید د نیستئ ویاړ مه کړه حمیده
ور به نه کړم دا شړئ په دغه شال "
" اطلسی پوش دِ وياړ نه ما د شړئ نه کا
شاړ نمد کړو آ ښينې غونډے بسترما "
" ورځے ئے تیرے ناست په نیپل اندړی پړسبے نه په تخت د پاسه ناست د بل کړ"

"چې په سوال اوږده کړې لاس چاته حمیده!
په یوه پرهر به دې بل پرهر دپاسه"

"په حیا کښې سرې وړې ترې ښه دې
نه په شهد و شکر موړې په بدرسوا"

"چې په پوزه ئې پېزوان نه وي د طمع
د همغو خلقو گردن به وي مدام لوړ"

"د خودبین سړي له دېرې پا سلونه
څه په لوړه چینکه ښه ده نه په سوال"

"د همغه د لاس اوبه د حیات مه څښه
چې آخر ئې لاندې کېږې تر منته"

"ذربه لاس د نا امید ئې په تشې کېږدي"
چې په اهل د دنیا تړې څوک املا"

"تور قید و نه وارېږه سهل دی حمیده!
څو په غاړه دې د طمع زنځیر مه شه"

د حمید بابا پورتني څو ذکر شوي شعرونه د څه تشریح او وضاحت موتاج نه دي ځکه نه لري چې هر څوک په دې پوهېږي دې چې محنت مشقت ښه شې دې او سوال او زاري بده خبره ده ولې په کومه طریقه په حمید بابا د دې خیال عکاسي کړې ده دا د دنیا ډېرو کمو شاعرانو په دې خیال نه داسې رنگارنگ او ښایسته شکلې نازکې جامې ور په غاړه کړې وي. حمید بابا خپله شاعري ته د چا خان، رئیس، ارباب یا نواب په صفت کښې کړې دي

نهٔ ده. حمید بابا غیرت لری، خودی لری، پښتو لری، یو داسې پښتو

چه د هغې ترمخه هغه به له ښالسته ؤ ریعنی نپل محبوب) د چا د پاره لا

ثنا صفت جائز نهٔ ګڼړی ـــه

"خدائې دِ کو ننګ کاندې حمید په هغه تربه،

چه به بې ښکلو پرې کړی د چا ثنا "

اؤ له دې د سوال کولو نه ورته دا بهتر ښکاری چه سرې په ځان لوږ

تنده تیره کړی، صبر نه کار واخلی اؤ چا ته لاس ؤ نهٔ نیسی. هر هغه

څوک چه د صبر اؤ قناعت خاوندان وی هغوئ په دُنیا کښې یو داسې

لوړ اؤ درونډ مقام لری چه دَ یو مالدار مال اؤ دولت اؤ دَ یو بادشاه

بادشاهی دَ دوئ تر پامه دَ یو معمولی شیو شائی قدر هم نهٔ لری

دوئ په نښت کښې شته مند اؤ د و لتمند وی اؤ خالی لاس ئې ډیر

څهٔ په لاس کښې وی. ـــه

" قناعت هسې دولت دَ حمید ورکړو

چه بادشاه ګڼړی تر ځان نه بې نوا "

---

# امرد پرستی

حمید بابا د عشق په لمبو سوے پتنوے، وریت اوُستی شاعر
ے اوُ بے د مینې د سوز و ګداز نه ئے کندران ګران دے هغه لکه سمندر
اور کښې زیږیدلے اوُ لوئے شوے دے اوُ د سرو سرو تکو اوُ سور
ارنه ئے بل څه په سترګو لیدلی نه دی. خو د مینې د مجنون اوُ د
حسن متلاشی اوُ پرستار په خپل عزم اوُ اراده کښې ښه مضبوط اوُ
ره دے. د ده د زړه په کوهِ طور کښې د مینې غرغنډے دی اوُ د زړه
فانوس کښې ئے د عشق اور بل دے. د ده د دیوان ابتداء هم د
وز ګداز نغمه کیږی ے

الهٰی د محبت سوز و ګداز را
په دا اور کښې د ستی سمندر ساز را

د پښتو ادب دا نازک خیال، ښکلا خوښونکے اوُ حسن پرستانه
اعر د حیا د ښاښت اُس مانی اوُ فریادی دے. ده دے هیڅ پته نه لګی

اکثر کسان دے پہ یو ھلک مئین شتہ۔ او ځینے د دہ معشوق نوم براَت شتہ۔ خو دا ھرخہ قیاسی دی۔ د تانیث پہ ځائے د تذکیر صیغہ راوړل د ایرانی او فارسی ادب اثر دے۔ خو پہ فارسئ ژبہ کښے ډیرکرا مر پہ لحاظ د تذکیر او تانیث د صیغو ترمینځہ ھیڅ فرق نشتہ دے او پہ دواړو حالتونو کښے یو شان الفاظ استعمالیږی د فارسی ادب د غہ اثر د مشرقی ژبو کښے و شاعرانو خپل کړے دے او اکثر ځائے نے پہ خپلو اشعار و کښے د "تانیث" پہ ځائے د "تذکیر" صیغہ راوړے دی۔ د کومونہ چہ لو ستونکو شبہ شی کا د دھغکانو ځینہ مطلب اخستے دے۔

پہ ایرانی ادب کښے د غزنویانو د دورے نہ د امرد پرستئ شہرت او رواج شروع کیږی۔ او د غہ واقعیت، اصلیت او حقیقت بیا ورو ستو د تقلید او روایت شکل بیا مومی او بیا د روایتی او تقلیدی شاعری د ایران پہ خوا و شا علاقو خپل اثر غورځوی او د پښتو نخوا ہ پہ پښتو خصوصاً او د ھندوستان پہ نورو ژبو عموماً دے اثر لاړی او یقینی کیږی۔ د لتہ د اردو ژبے د یو څو شاعرانو د کلام نمونے ښودل بہ کافی وی۔ ناجی لیکی

سہ

دیکھ اِس لالچی لڑکے کو کوئی کب تلک بہلا

چلی جاتی ہے فرمائش کبھی یہ لا، کبھی وہ لا"

پیام وائی

سہ

"دلی کے کچھ کلاہ لڑکوں نے
کام عشاق کا تمام کیا"

سه

میر وائی

"لڑکے جہان آباد کے یک شہر کرتے ناز
آجاتے ہیں بغل میں اشارہ جہان کیا"

"میر کیا سادہ ہیں بیمار ہوئے جس کے سبب
اُسی عطار کے لونڈے سے دوا لیتے ہیں"

او امیر خسرو وائی سه

"زرگر پسرے چون ماہ پارہ
کچھ گھڑ لے سنوار لے پکارا
نقد دِل من گرفت و بر فت
پھر نہ کچھ گھڑا نہ کچھ سنوارا"

د امرد پرستئ دا رواج په ایران اؤ خراؤشا علاقو کښې دومرۀ ... ام کېږی چه شیخ سعدیؒ غوندے عالم بزرگ اؤ دانشمند هم ددے اثر ... نۀ پاتے کیږی اؤ د گلستان په پنځم باب کښې په دے حقله ټمۀ ... پورے حکایتونه لیکی په زیات ترکښې دهغۀ د نپل تروند قصے ... واقع دی. د غسے د هرات په تخت د تیمورۍ خاندان اخیرنی ... موړی بادشاه سلطان حسین بیقرا "مجالس العشاق" په ... یو کتاب کښې د خلورۍ[۴۲] او یا داسے بزرګانو عالمانو صوفیانو او ... اعرانو او سلاطینو ذکر کړے دے چه هریو په چا شکلی هلک مبتلا و

اؤ دا ټول امرد پرستان یا خو به څوک عالم، مُلا، فقیهه، شیخ، پارسا صوفي وو یا څوک اُستاذ، مدرس اؤ یا څوک د ښار قاضي اؤ مفتي وو دغسې د محمود اؤ ایاز د مینې داستان ترننه ګرم دے.

دابو علي قلندر دیؤ هندوکي سره د مینې قیصه ترننه د خلقو په ژبه عام ده۔ اؤ دمادهو لعل حسین په یاد کښې د لاهور په شالیمار باغ کښې د "میله چراغان" نه څوک هم بلد اؤ واقف دي چه د کرامت بزرګۍ خاوند لعل حسین څنګه د ښکلي ښائسته هندوکي "مادهو" نوم د مینې محبت له کبله تر عمره عمره ترړے پاتے شو. د داراشکوه د صوفیانه خیال مرستیال اؤ ملګري صوفي سرمد چه بیا د روستو د اورنګزیب بادشاه د لاسه اووژلے شو. د لچمن رام نوې هندو په مینه کښې داسې نن هم اکثرو خلقو ته یاد دے. سه

سرمد چه خطا دید ځ نه خدا او رسولؑ
که بنده ځ لچهمن او رام شد ای"

د حمید بابا نه وړاندې چونکه خوشحال خان خټک اؤ عبدالرحمان بابا بالترتیب د "قومیت" اؤ "حقیقي عشق" سبکونه خپل کړي وو. نو په دغه اساس حمید بابا له بے له دینه بله لاره نه وه چه د مجازي عشق لمن راټینګه کړي اؤ دے سبک له شهرت اؤ خلا ورکړي. د غه وجه ده چه هغه په خپل کلام کښې فارسي مصطلحات لکه چاه ذنخ، خط، سروقد، د موسکي په ښکلو برات د برات عاشقان بر شاخ آهو، وغیره ښه په پراخستي اؤ خلاصه

باسل اَوْ د فارسي ادب دا شوله کبله ځ کرانو اَوْ سخت مضمونونه
دا پېولو اَوْ په دغه پُرتکلّفه اَوْ پیچیده مضمونونو اَوْ استعارو
هاتو ځانله یو لوړ اَوْ اوچت مقام پیدا کړو اَوْ د فارسي
ق اَوْ اثر لاندې دا قسم شعرونه چه دا شان اَوْ بیا په تېرنېز
ون د عزت غیرت اَوْ مزاج خلاف وي، بې دریغه په استعمال
غلل

ـه

"دا سپي توب دې زمانو نس ترسره پتو به
که په مینه کېږي هر څو سره سپي کیږي"
"ستا دَدر دَ سپیو قدر دې بیا نه مو ند
که هر څو ځوې دې ته ځان کړو کمینه"
"په سره کېږي به ځان هو مره حساب نکړم
څو حساب نه شم دیار دَ در په سپیو کېږي"
"با هوډ ځان شمیره دیار له سپیو
چه لائق په دغه شمار کېږي نه وو نه شو"
"په سپي توب د عاشقۍ را څخه نه څي
ځکه شم بلې شاه ته په "تو" په "څخه"
"دحمید په خیر به ځان د سپکلو سپي کړي
که څوک بیا موسي د عشق کمینه فیض"
"دا خطاب دیادشاهۍ د سلطانۍ دې
په یار وُ بولي حمید د سپي په اسم"

د حمید بابا د کلام په نه یا ته برخه د مجازي عشق، امرد پرستۍ او د هلکانو د مینے خیال او اثر نورو ورو دے او د فارسي ژبے دوه قیصې کتابونه ،، شاه و ګدا ،، او ،، نیرنګ عشق ،، هم په دغه غرض لکه چه پښتو کښے را ترجمه شوي دي. د هغه دا شو شعر ونه د دے خبرے ښکاره او څرګند ثبوت دے.

"یا تر حوُر دے په ښائست یا ښایسته پیرزدے
نه غلط شوم په دا دواړو کښے تیر دے"

"کرم څوک بختور بولي نن ئے درنګ دے
چه دا هسے ء تر حوُر نیولے څنګ دے"

"دا هم وایه د مینے محتاجي دہ
چه هلک ته سپینه ږیره بابا وایم"

"دا چه ستائي تر حوران د جنت خلق
له هغو نه یو زما په یقین نه دے"

"نن ګواهي د جنت درسته په حمید شوه
چه ئے ناست په څنګ کښے تا غوندے تر حوُر دے"

د حمید بابا د کلام د لوستونه دا هم څرګندیږي چه د هغه د مینے اشنا چرته لرے د هندوستان په سفر تللے دے او د دے د هغه په ارمان فراق هجران او بیلتون کښے سوزیدلے دردیدلے او د غم نه ډک فریاد د شعر په جامه کښے د زړه د کومې نه راوتلے او د غسے ځان څخه ګیر چاپیره ماحول او فطرتي مناظر زړه وړي. د هغه دوه ترکیب بند او مخمس نظمونه هم د دغه جدائي نتیجه دي چه د پښتو د شعر او ادب نادر او بے مثله فنپارے او شهپارے دي. په دغه ښکلا او میدان ورو سپتو ګنړو پښتو شاعرانو کښے طبیعت زور ښکاره کړے خو د حمید بابا د نظمونو اوچت او لوړ مقام ته څوک هم رسیدلی نه دي.

# نازک خیالي

نازک خیالي په لغت او اصطلاح دواړو کښې د خیالاتو نفاست او باریکۍ ته وائي او په شعر و شاعرۍ کښې هم نازک خیالي هم په دغه معنیٰ کښې استعمالیږي. وې دلته په یو شعر کښې د یو خیال بیان دومره نزاکت او ښکلا سره پکار وي چې د اورېدونکي یا لوستونکي جذبات او احساسات راولړزوي او کافي ترې متأثره شي. د نازک خیالۍ د پاره دا ضروري نه ده چې د تشبیهاتو، کنایاتو او استعارو په استعمال دې راوستې شوې وي. خو عموماً په کلام کښې د نزاکت راوستو د پاره دا لوازمات راوړې شي او بې له دې د شعر خوبي او باریکي راوستل ځنې ګران غوندې برېښي په یو شعر کښې تشبیه یو څیز یا د یو څیز نازکې او لطیفې برخې ته د بل څیز یا د بل څیز نازکې او لطیفې برخې سره په داسې ډول ورکړې شوې وي چې دا دواړه څیزونه یا د څیزونو دا دواړه نازکې او لطیفې برخې په یوه خاصه معنیٰ کښې یو بل ته نږدې وي او خپلو کښې جوخته علاقه او

شوکت لري.

هم، د غه تشبیه که څه هم د حقیقت نه ډیره لرې هم وي خو چه ذهن ته پریوزي نو د نازک خیالئ په لحاظ پیر لږ شي ځکه چه یو شاعر اکثر د جذباتو د اثر لاندې حقیقت نه ډیر لرې لاړ شي او د یو معمولي ذرې نه د نمر ستوکه جوړه کړي. د شعر و شاعرئ خوځانګه یو ه دُنیا ده او د سائنسي حقائقو څخه ئې څه خاص تړون نشته بلکه د "، لے تفنن " د قول مطابق کوم ځائے کښې چه د سائنس حدود ختمیږي نو له هغه ځایه د شاعرئ حدود شروع کیږي. سائنس یو سخت سپور مضمون دے او د و مره طاقت پکښې نشته دے چه زمونږ پټ د ننه جذبات او احساسات را وُپارولے شي دا کار خو د شعر و شاعرئ په غاړه دے چه زمونږ جذبات را ویښې کړي او بے قراره زړه ته مو آرام او سکون ورکړي.

د غه وجه ده چه څو مره یو شاعر په شاعرئ کښې نزاکت نازکوالے وي د غه هو مره زمونږ په زړه د هغه د کلام زیات اثر وي او چه څو مره د هغه د کلام اثر زیات وي د و مره د هغه سره زمونږ زیاته مینه وي او د هغه نوم او کلام ته د عزت په سترګه ګورو او د خپل خوږ زړه ملهم ئې ګڼړو. د ګڼو دا نظریه تر ډیره حده د دے خیال مرسته کوي چه کوم ادبي تخلیق زمونږ احساسات را وُ لړزوي او زمونږ

تأثرات بیدار کړي نو د هغے په کامیابئ کښې

هیڅ شک او ګمان نه وي.

# دَنازک خیالئ تحلور غټ قسمونه دي۔

(۱) مخصوصه نازک خیالي

چه په یو شعر کښې داسے تشبیهه یا استعاره ورکړے شوے وی چه هغه یو خاص څیز پورے تړلی وی او په لوستلو سره ذهن ته دغه مخصوص څیز راشي دنازک خیالئ ترجمانه وی او ذهن ته ډیر زر پریوځي لکه دحمید بابا په دے دوه لاندینو شعرو کښې د زلفو تشبیهه تور ښامار سره او دګروخو تشبیهه لړم سره مخصوص ده۔

سه

"تور ښامارے دَ جنون له غاړے تاؤ شی
چه دِ دُ وسینم په مخ زلفے تاؤ کړے"

"داد یار دګروخو خیال دے نه پوهیږم
که لړم ے تخکوی زړهٔ په لښتو"[1]

(۲) سفکرانه نازک خیالي:

چه په شعر کښې یو نازک خیال په داسے طریقه ورکړے شوے وی چه په اسانه ذهن ته نه پریوځي او مفهوم ته ئے رسیدو دپاره لږ سوچ او فکر غواړي لکه دنمونے په طور دحمید بابا دا یو شعر اوګورئ۔

سه

دُ وریځ ترا اوبو دیر کانړی وریږی ~~~~ نشته امید دے د خوبانو و ربار نه "

---

[1] دلړم لشته ئے مانه وی اپه زړه کښې ~~~~ چه ئے نقشی دی په زلفو ابرو دستار "
(رحمان بابا)

۳: استعاره در استعاره

په په یو بیت کښې د اسې تشبیه یا استعاره بیان کړے شوی وي چه ذهن ته قطعي نه پریوځی او مهمل وی خو له دے هر څه با وجود دومره لفظي رعایات او رنګینی لري چه اوریدونکی یا لوستونکی که پرے نه هم پوهیږي، بیا هم داد ورکړی لکه د حمیّد بابا په دے لاندېنی شعر کښې لعل د سرو شونډو او اننګو دواړو ځنځه تشبیه کیدے شی. خو هم په دغه مصرعه کښې د لعل د خاصیت یو بل متضاد ځیز سرے سکروټے د سرو شونډو سره تشبیه دی او ورسره مناسبت کښې سوزیدل لفظ راوړے شوے دے او په بله مصرعه کښې د لعل مناسب الفاظ دیمن عقیق راوړے شوے دی. شعر استعاره در استعاره دے او مطلب ئے د الفاظو نښکاره نه دے خو بیا هم د لفاظۍ او رنګینۍ له کبله د داد مستحق دے۔

ب

"په هر لعل ئے سرے سروټے پکښې سوزم

نه ئے عقیق د یمن څه کوم بے تا"

۴: منظر کشی:

په یو شعر کښې نزاکت راوستو دپاره څه منظر په داسې ډول بیانول چه په اوریدو یا لوستو ئے د ذهن سترګے ته د غه مکمل ښکلے او رنګین تصویر معانې ودریږي لکه د حمیّد بابا دده شعرو نه د منظر کښۍ څو مره اوچت نمونے دی۔

۵

"انتظار ئې د نرگس گو نه کړه زیړه
سرو سرې له باغه بیرون وکیښ"
"په ماضۍ په عدالت شو ستا د حُسن
گونګه ژبه د سوسن په سوال جواب شوه"

حمید بابا د پښتو ادب د نازک خیالۍ د مکتب هغه سرلوړے او نوموړے شاعر دے څوک چه ترننه د پښتو ادیبانو او شاعرانو ترمینځه د "موشګاف شاعر" په نوم یاد او روان دے. د ده کلام یو داسے شهپاره او ګوهرپاره ده چه د پښتو ادب لمن ئې د نازکو او نادرو تشبیهانو، صنائعو بدائعو، کنایاتو او استعارو نه ډکه کړیده که فارسي خوان د فارسي ادب په وحشي، یزدي یا فغاني نازیږي یا عرب په متنبي او اردو دان د نولسمے 19 صدئ په مومن او انګریزان د اولسمے صدئ په جان ډن ( John Dunne ) ویاړي نو پښتانه د حمید بابا په نوم اخستو ویاړ او فخر کوي او د بلے ژبے د اوچتو شاعرانو نه ئې په هیڅ شان له کم نه ګڼړي.

د حمید بابا نه وړاندے د پښتو شعر او ادب د نازک خیالۍ په دے میدان کښے چا خاص نه غاکړے نه وو او د شعرو شاعرۍ دومره ډورو ته څوک ورکوز شوی نه وو لکه څومره ژورتلل ته ئې چه حمید بابا ورکوز شو او برابرے تراشلے شوے ملغلرے ئې بهر راوویستلے او د غزل په تار کښے ئې ډیر په خیال او فکر سره وپیرلے. د ده په کلام

کښې د فکر تخیل او بیان داسې امتزاج دے چې د ادب ټکی ئې په لوستو نهٔ مړیږي.

دے وړو مینې شاعر دے چې په پښتو ادب کښې ئې د باریک بینۍ ور پرانستو او په دے میدان کښې د غزل د کښې شهره ئې په سر و ترله او یو داسې مثال ئې قائم کړو چې تر اوسه پورې ئې چا نظیر پیش نه کړے شو دده نه پس ډیرو ښو ښو شاعرانو د نازک خیالۍ په دے ارتا پیرتا میدان کښې د خپل فکر آس و نه په ځغلولو او ځغلول وے ئې هم دومره ځغلېدلے شو چې د هغه په ځغلېدو نن دده د کوشش کچه او پیکه ښکاره شوے دے.

په دے لړ کښې د کاظم خان شیدا او علیخان نوم و نه د یاد وړ ئې خاص وړه دی ځکه چې د نازک خیالۍ په قطار کښې د حمید بابا نه پس په دویم صف کښې ولاړ دی او د چا دا جبه که په پښتو ادب کښې د حمید بابا برابره نهٔ ده نو ډېره کمه ترے هم نهٔ ده او هغه هومره لوړ او درونډ مقام لري کوم چې د حمید بابا دے. او د کاظم خان شیدا په حقله داګمان کیږي چې دے به د حمید بابا نه هم وړاندې تلے وے که چرې دده په شاعرۍ کښې د فارسۍ ژبې د الفاظو بې دریغه استعمال نهٔ وے د کاظم خان شیدا سره سره د نازک خیالۍ په دے صف کښې بل ادبي شاعر علیخان او دهٔ په اوږه ولاړ دے. دده په شاعرۍ کښې که هر څو د حمید بابا او کاظم خان شیدا هسې کنږې او نادرې اشارې، کنائې او تشبیهات نهٔ هم شته وې بیا هم دده په کلام کښې چې د بیان کوم

نوردے نو په هغې کښې ورته دا دواړه شاعران پاتې راغلی دی، بلکه دا په وړوایو چې د علیخان په شاعرئ کښې چې د بیان کومه چُستی، تیزی اُو روانی ده نو هغه د پښتو ادب د بل یو شاعر په قسمت هم لا رسیدلے نه ده۔

حمید بابا لکه د نورو ډیرو پښتنو شاعرانو اُو ادیبانو په شان د فارسی اُو عربی ادب نه متأثره ښکاری اُو د دغو ژبو څینې ټکی اصطلاحات تمثیلات اُو تشبیهات ئے په خپل کلام کښې راښکاسلی دی خو اصلی خبره داده چې په یو شعر کښې د نازک خیالئ راوستو دپاره دا ضروری شی چې د نورو ژبو لوسته اوکړے شی اُو د دغو ژبو څینې استعارے کنائے اُو تشبیهات د خپل ماحول مطابق خپلے کړے شی۔

په پښتو ادب د فارسئ اثر د مرزا خان انصاری راسے شروع شوے وو اُو پښتو ژبے ته څینې الفاظ اُو تشبیهات وغیره داسے خپل کړی وو لکه چې عین د دے ژبے خپل الفاظ اُو تشبیهات وی نو ځکه حمید بابا هم د دے قسم الفاظو اُو تشبیهاتو په استعمال کښې څه بد اوے و نه لیدو اُو لکه د نورو ډیرو پښتنو شاعرانو په شان ئے د هم استعمال جائز اُو سنه وګنړلو۔ بلکه که د حقیقت په سترګه وګورو نو دا هم هغه الفاظ اُو تشبیهات دی کوم چې د ده نه وړاندے ګنړ وپښتنو شاعرانو اُو ادیبانو بیا بیا استعمال کړیدی۔

د حمید بابا په شاعرئ کښې مجموعی طور بدوی اُو عوامی اثر لکه د عربئ ژبے د زړو شاعرانو امرأو القیس، طرفه، عنترا، عمرو بن کلثوم اُو لبید په شان ډیر زیات دے۔

حمید بابا د پښتو ادب د غزل پلار، د منظر کشۍ استاد او د نازک خیالۍ
بابا آدم دے. حمید بابا فنکار دے، مصوّر دے. یو داسې مصوّر چې څنګه
یو ځیز ویني نو مخ سره هُو بهُو هم هغسې نقشه راکاږي او د
ښائسته ښائسته رنګونو ئې ډکه کوي ښکلي خیال ښائسته الفاظ او روانه
ساده ژبه د حمید بابا د کلام خاصه ده. د حمید بابا په نزد هغه شعر هډو
د سره شعر نه دے په کوم کښې چې یو نوے ښکلے خیال پروت نه وي او د
باریکۍ او نزاکت انتها ته رسیدلے نه وي. ګنې دے یو شعر ته ئې لږ
او ګورئ چې څومره بے اندازې ښکلا پکښې پرته ده او د استاد سترګو
تعریف دے نه نور څه ښه کیدے شي.

سه

"مړاوے رنګ نرګس ما پوښته له مړاو سترګو
دا چې وي خبر دا دے د خوار په خوا"

سترګو ته د هوسۍ سره او شونډو ته لاله زار سره کیدے شي چې ډیرو
شاعرانو تشبیه ورکړے وي. ولې دغه دواړو تشبیهاتو په یو ځائے
راوستل او بیا په دے ډول چې حمید بابا وستے دي ګوندے که د بل یو
شاعر په شاعرۍ کښې اوموندے شي سه

"نو رے سترګے سره لبان ئې هسې زیب کا
لکه ګل په لاله زار کښې آهوان شي"

دغسې د محبوب د سرو شونډو په حقله ئې دغه دوه شعرونه
که هر څومره داد ورکړے شي نو کم به وي. سه

"چې د پان غوندې لړمون په ونیوړ کړشو
د سرو شونډو انفعال شو راته ښیښې"

"سرې شونډې ئې زیب هسې پیدا په تبسم کا
عین لکه غنچه چې پانړې او سپړي د ګل"

پښتو ادب ته د نو خطو د خط ذکر د فارسي ادب نه راغلې دے او پښتنو شاعرانو ډیر په شوق او مینه قبول کړے دے. په پښتو کښې به داسې ډیر کم شاعران تیر شوي وي چا چې به په خپله شاعري کښې د اشنا د خط ذکر کړے نه وي او بیا په تیره تیره حمید بابا خو په دې حقله حد کړے دے چې په دے موضوع ئې کاني اشعار ډیر په ښکلا او نزاکت سره ویلي دي سه

"د نړۍ وه سن د سکندر خوځو ما ځوځو
یا د یار له مخه خال او خط شو رابرسیږ"

"په لمبه ئې د حسنار د سوا یرے شو
په ئې کیښنو ده په فراش د حسن کام خط"

"هسې زیب کړي ښکلي مخ په خال و خط کښې
لکه وا غوندي مکے ته تور غلاف"

"تر تور خط لاندې ئې زرنه هسې زیب کا
لکه نتوله شي مچۍ په انګبین"

خط ته د ځوځو ما ځوځو، تور غلاف، یار، تور و مچو سره تشبیه ورکول هم د حمید بابا کار کیدے شي ځوک چې د خیالاتو په دنیا ښه قابولري

اوَ دیوُ خیال په نوې نوې جامه کښې د پېښېس کولو پوره مهارت لري
خاطر ته کوي د آشنا په مخ د تور خال عکاسي داسې نه هم په ښه ډول
کوي.

سه

دا په وُچولي تور خال زما د یار دے
که اذان لره ختلے دے بلال رض "
"مشکین خال دے په سرو لبو هسې ښایسته
لکه مست په میخانه کښې ملنګ کښیني "

د غسې په مختلفو موضوع ګانو د رنګینۍ، شوخۍ، رومانیت اوزړه
نه ډک د حسین بابا داسې شعرونه هم د آسمان سره خبرې کوي

سه

"سره لمبه شو لاله زار زما له آهه
د زړهٔ سوُو په زړهٔ سوُو زړهٔ سوے کېږي"
"په هے یار له خوبه ویښ نه کړے نسیمه!
کوره آلوزه په درو په تلطف"
" د ګل رُخو د دستار په تمنا کښې
لکه ګل په وینو سور دے زما دل"
"د مغرب د لورې نمر وُخوت قیامت شو
که ناځي په کږو ناز د لبر د پاسه"
"زړهٔ دے له غیرته په کوکل د ننه دُود شي
کومتو چه دِ بې پاسه وهي کوتے په کاکل "

"هسې پټ مهر په قهر کښې کړی ښکلي
لکه څوک چې کفرستان کښې دینداري کړي"
"بې هوده ئې صبحدم بولي وکړې
د غمازه زما له غمه کړ دوت وکینې"
"ناخبره ئې له حاله شفق بولي
که د وینو په ژړلو کړم آسمان روب"[1]
"په وربه ئې د نسیم په رُخسار داغ شي
د بوسې په حیا ئې ورو رېږې نشم بیا نشو خوځ"
"په نظر ئې د ګل رُخ ساقي په مخ شو
د نرګس د لاسه جام پې یوت سکور شو"[2]
"پریکوو ته ئې سو تیت د ګلو ښاخ کا
چې د باغ په کناره شي دلربا ګړه"
"سوز خو خونه لري د لسوز نشته حمیده
د لاله په سوي خوا وسوه چا خوا"

د حمید بابا څو نور لونو نمونه د دې نو مختلفو شعرونو را نقل لونه به ښیا غلو لوستونکو ته اندازه کیدلي وي چې په پښتو بې کښې زمونږ د دې شاعر تو مره لوړ او د دوند مقام ګړي او

---

[1] درران ئې لاس سُونی د شفق بولي ؛ که په وینو کړم بربونه د آسمان روب"
"شمس الدین کاکړ"

[2] په نظر ئې د ګل رُخ ساقي په مخ شو ؛ د نرګس د لاسه ووختنه پیاله"
"حمید بابا"

دا حقیقت به هم ورته لکه د نمر ښکاره شوے وی چه د دۀ په شاعرئ کښے په کوم لطافت اؤ نزاکت دے د نورو پښتنو شاعرانو په شاعرئ کښے په دے مقدار نشته دے اؤ د دۀ هر غزل اؤ د غزل هر یو شعر دومره بے کچه تاثیر لری چه سړے ئے په اوریدو یا لوستو یو ناساپه د خلے نه د څۀ سوچ اؤ فکر نه بغیر ,,واه، واه،، اؤ شاباسی چغه راپورته کړی۔ اؤ د بار بار لوستو یا اوریدو مینه ئے لری۔ دلته د پورته شعرونو نه علاوه دا درے بالترتیب پوره او مکمل غزلونه ئے هم راوړو چه د نازک خیالئ له اړخه د حمید بابا مقام ښۀ واضحه اؤ جوت شی۔

۱

,,خط په مخ د صنم راغے که سپوږمئ شوه په هاله کښے
دائے غمازی په خوله کښے زیب کاکه ژاله شوه په لاله کښے
هسے رنګ سحر جادو کړی په نظر د شهلا سترګو
نۀ ئے سیال په هند کښے شته دے نۀ ثانی په بنګاله کښے
لکه وحشی مرغئ په سست دام د تناو لړمو
هسے رنګ پریشانو زلفو کښے یستم په کشاله کښے
دا زما له غمه شین زړۀ یکښے خیال د یار د شونډو
هسے رنګ زیب و زینت کا لکه مے په شنه پیاله کښے
ما وے عین کتره ګا دے د غنچے په لمن نخښتے
چه مے کوت یو ګل اندام وو پروت په سبزه دوشاله کښے

بنگلے هم کړی ولے ناسته په مجلس د مے قیبانو
په بوار د سپیوګ نه دی هیڅ آرام په غزاله کښے
سرتوپایه غم د هجر لکه نے سورے سورے کړم
ځکه یم مدام داهسے رنګ په آه و په ناله کښے
که یاد غواړے هومره تا پړه خو د رځی عبدالحمیده
دا په دا چه ډیر موندے شی په دریاب نه په ناله کښے"

سطے

"غره مه شه که په پښو د ناخوال پریوت
د سیلاب له پا بوسیه دیوال پریوت
په هجران کښے به مے تیرله حلقه نه شی
که د خلے د وته مے کوټ د زلال پریوت
محبت نه دو یو تند رځ سمانی وو
چه ناګاه زما په سر او په مال پریوت
ناخبر خلق ئے وائے شفق بولی
دا زما د زړه له زخمه دسمال پریوت
مه شه وګته پوپیچ د لفے د تورو کو
چه په هر تار ئے د زړه ته ځنجال پریوت
چه نسکاره زما د زړه تابنده نمس شو
د سپوږمۍ دلاسه هلته مثال پریوت
شوم فلک د روښنو مور که هله ورکړه ما — په له لاسه مات کچکول دهلال پریوت

داے پریوته ریخه دزړهٔ له دا غمه | که دلاس نه د نمرمخی مثال پریوت

په زماد درویزے په کچکول څیړ شی | دحاتم په زړهٔ ئے سهم دسوال پریوت

خفه کوے دے هرکوره دیار هجر

څکه غږ دحمید نهٔ شی ملال پریوت

## ۳ے

په خیرات چه یارد حسن لاس پاس ونیو | نمر سپوږمۍ ورته کچکول پاس په لاس ونیو

مهتر خضرؑ به ئے په عمر مشتری شی | که ئے خال غلام د مخ په نخاس ونیو

که څوک نیسی نو یو زړهٔ په اخلاص نیسی | یارے ترکو درست جهان په لباس ونیو

داکړه بخت مرور یار زما په خوا کښے | کنزه چا لید کبوتر په کرکاس ونیو

شګوفے شګفتګی په شبنم راوړه | که ئے سترګو په ژړا کښے الماس ونیو

په ے یار په لوړګند رنهٔ کا دمهر | خدا زده نهٔ پوهیږم بیا ئے وسواس ونیو

ذرکړی نور ثنا خوانی د ترکو څهٔ شو | که یوهٔ ناصح زبان له سپاس ونیو

په ئے تا پکښے کول سترګو خوبونه | دمخ سپارے د زیړے مواس ونیو

په نازلتو دعشق تنار له آسمانه

ما حمید دغم لائق ورته لاس ونیو

"هنګامه د مینې ګرمه ده تر حُسنه
د مجنون د دَرَه ګډا شه لیلا مه شه"

# حُسن او عِشق

حُسن په دوه ډوله دے. مجازی حُسن او حقیقی حُسن. د ښو خاصیتونو او خوبو په یوځائے کیږے په دلښے شکل راغونډیدل په داسنان ظاهری یا باطنی نظرئے په لید و یاد غوږونو په اوریدو یو قسم له خوشحالی محسوس کړی او ورته په فکر او را ښکلے شی او زړه ته تسلی ورکړی مجازی حُسن بللے شی او حقیقی حُسن هغه دے چه د "ښو" په ځائے تیولے ښیګڼې خوبیئ او خاصیتونه په اوچت معیار په یو ځائے کښے راغونډ شوی وی او هیڅ کے پکښے نه وی.

"داسطو په نزد د ښکلا محسوسولو د پاره داضروری ده چه د ښکلی څیز ټول اجزاء د سړی د نظر لاندے وی. ښکلا که د اجزاو په ترتیب کښے توازن ته وائی نو پکار ده چه دا اجزاء او دغے اجزاو نه

نه رونړ شوے. ګل ، داسے دی چه مونږ پکښې دا ترتیب او توازن محسوس کړے شو. دغه وجه ده چه هیڅوک هم دیته ښکلا نه شی محسوسولے ځکه چه دیته په اعضاؤ کښې تناسب او توازن نه شی محسوسیدلے. هم دغسے څوک هاتی ته هم ښکلے نه وائی ځکه چه په یوه نظر د ټولو اعضاؤ احاطه ناممکنه ده او ځکه ئے دغه اعضاؤ کښې ترتیب، توازن او تناسب محسوسول هم ناممکن وی.

هم په داستان یو ښکلی وجود کښې د ښکلا محسوسولو د پاره دا ضروری ده چه دا ښکلے وجود یو خاص قدامت او جسامت لری چه په نظر ئے احاطه کولے شی او د اجزاؤ ادراک او احساس ئے ممکن وی۔[1]

حسن انسانی وی که حیوانی یا نباتاتی. د هغه ښائست وی که د جینی، د طاؤس غوندے رنګینی مارغه وی یا ښائسته ګل، د رباب سرناک ترنګ وی او که تان سین ښکلے آواز. هر یو په خپل خپل ځائے ښکلا لری او ښائسته ښکلے، حسین، محبوب، معشوق یا جانان ګڼړلے شی.

د خوبو او صفتونو نه ډک دغه مادی روحانی یا خیالی شکل ته چه څوک راکښلے شی او اترے پرے پریوځی د عاشق یا مئین په نوم یادیږی او بیا د دے مئین یا عاشق له طرفه چه کومه تنول عمری نه پوره کیدونکے غوښتنه کیږی د عشق یا مینے په نوم بللے شی.

حسن او عشق یو تر بله خپلو کښې ډیر بوخت پیوستون او تعلق لری

---

[1] "نظمیات" ارسطو "POETIC" ترجمه قلندر مومند

اوُ ماڼوم دی د یوُ نشتوالے دَ بل نشتوالے دے اوُ دیوُ ختمیدلو
اُولاااا۲ سره دَ بل سم ختمیدل دی چه حسُن نهٔ وی نو دَ عشق ثمهٔ سوال نهٔ
پیدا کیږی اوُ چه عشق نهٔ وی نو کهٔ حسُن وی هم، بیا هم په نشت
حساب دے. حسُن کهٔ حسُن دے نو عشق سره حسُن دے. بے عشقه حسُن
لکه دَ هغه سوُر لاله گُل مثال دے چه په میره کښے بے دَ چا دلیدنے کتنے
اوُ تعریف ترے ترے اوړ تڼی اوُ خاوُرو سره خاوُرے شی.

دَ حسُن معیار دَ هرچا اوُ دهرے علاقے نپل نپل وی. دَ یوُ یوُ
سره مینه، دبل بل سره مینه، دهرچا نپله بپله اوُ جدا مینه ځوک چه
ښاخوښی دی هغهٔ ستا خوښی نهٔ دی ځوک چه ستا خوښی دی هغه
ښاخوښی نهٔ دی. تهٔ سپین رنگ حسُن گڼړے زهٔ غنم رنگے رنگ
حسُن گڼړم. تهٔ ښنے سترگے خوښوے زهٔ تورے سترگے خوښوم. لیلا
که توره وه د مجنون دسترگو نور وه. دَ چین جت پوزی که چیته
پوزه حسُن یولی نو دا ایشیا په لورو گڼړو ملکونو کښے ولاړه نرئ
پوزه دحسُن نخښه ده. دافریقے یو تور حبشی به چرے هم سوُر سپین
رنگ حسُن وُنهٔ گڼړی هغهٔ ته تک تور لکه دتبجی رنگ حسُن ښکاری
دهغهٔ معشوقه چه څومره توره اوُ غټے غټے شونډے لری ښکلے اوُ ښائسته
ده. هغه یه دغه خپله تکه توره معشوقه دیورپ عالمی حسینه باندے
چرے هم بدله نهٔ کړی. ولے بل پلوُ دیورپ سپین رنگی دے تور رنگیانو
سره روتتی نوړل هم نهٔ خوښه وی اوُ دهرقسم بنیادی حقونو نه ئے
محروم ساتی. عن چه دَ امریکے غوندے ترقی یافته ملکونه هم ددے نسلی

امتیاز ښکاره دی. سپین د تور نه او تور د سپین نه سخت نفرت کوی او چه وس ئے رسی نو د یو بل د لاندے کولو کوشش کوی اسلام نسلی امتیاز نه منی دلته د سپین په تور یا د تور په سپین هیڅ برتری نشته دے دواړه انسانان دی او یو هومره حقوق لری دلته اوچتوالے صرف او صرف په اوچتو اخلاقو دے الله تعالی سره په نزدیکت دے. دالله تعالی په عبادت دے. د حسن حقیقت په مینه دے او خلقو سره په ښه سلوک ساتلو دے. دغه وجه ده چه دلته حضرت بلال رض حبشی غوندے تور حبشی او د مکے مدینے امیران سرداران په یو صف کښے ولاړ ښکاری او په یو آواز دی او هم یو مقصد د پاره خپل ځان قربانول فخر ګنړی.

خو په دے ځائے کښے زمونږ تعلق د شکل و شباهت یا یو داسے ځائے سره دے چه د زړه په تختئ را کښیلے شوی وی او په دغه زړه کښے ئے ځانته کور کړے وی، مذهب سره نه دے بلکه هغه حسن سره دے چه بلبل ئے په نغمو کښے، پتنګ په سوزیدو کښے منصور په دار ختو کښے، مجنون په کړیدو کښے، او شاعر په ژړیدو کښے ستائی. مادی حسن که هر څو بے اخلاقه دے، بے اصوله دے. تل د وفا په ځائے جفا کوی. خو بیا ئے هم غوښتونکے غوښتنه کوی او د خپلو لو کوشش ئے کوی. یو مجازی محبوبه بے ډیره ظالمه وی او حرکات سکنات یے هم ورد انسانانه وی خو بیا هم چه هغه ښایسته وی نو د عاشق د زړه ټکړه وی

او غصه، قهر، نفرت او نور غلط حرکتونه ئې ده د پاره ناروا وی دده عشق ته پرې دوام رسی. نوب خوب او ډېر ترې اخلی او د خپلو نو د پاره ئې نور هم تنگ وپوی کوی.

د آدم نه تر دې دمه دنیا هم په دې حسن او عشق آباده او روانه ده. الله پاک چه بتول حسن حسن وو د خپل حسن د تعریف د پاره ئې بې شمیره فرښتو نه علاوه انسان پیدا کړو په د حسن تعریف ئې وکړی.

"کُنْتُ کَنْزًا مَخْفِیًّا فَاَحْبَبْتُ اَنْ اُعْرَفَ فَخَلَقْتُ الْخَلْقَ فَبِیْ عَرَفُوْنِیْ"[1]

نو هر کله چه انسانی تیکه د حسن د ستائینې له برکته ایښودې شوې ده نو باید چه عشق د انسان په خته کښې لکه د بوسونل ترتله اخلې پروت وی او بې له دې ژوند نیمگړې او نیمه خوا وکړی د عشق ژوند که هر څو له غمونو مصیبتونو او تکلیفونو ډک دې نو بیا هم د غه ژوند خوندناک او مزه ناک دې او انسان د عشق د غه دروند بار ته خپله اوږه ورا ړمه کړې ده.[2]

---

[1] زه پټه خزانه وم ما دا غوښتل چه او پیژندې شم نو مخلوقات مې پیدا کړل او هغوئی زه او پیژندلم، (حدیث قدسی)

[2] "اِنَّا عَرَضْنَا الْاَمَانَةَ عَلَی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَالْجِبَالِ فَاَبَیْنَ اَنْ یَّحْمِلْنَهَا وَاَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا الْاِنْسَانُ"، موږ خپل امانت (یعنی ذمه واری یا مذهب) آسمانونو او زمکې ته پیش کړو هغوئی ئې اوچتولو نه انکار اوکړو او انسان پورته کړو.

ے

"د عشق بار چه آسمان زمکے ساهه نه شو
تا په کوم قوّت اخیست کوتاه اندیشه"

د انګریز مفکر او فلاسفر هابز[ے] (HOBBES) دے نظریے سره پوره هم اتفاق کیدے نه شي چه د موجوده منظم حکومتونو نه وړاندے "د فطرت ریاست" وو چه په هغے کښے به هر انسان د بل انسان دشمن وو او څوک به چه په یو بل پیښیدل نو مرګ ته رولېبه به ئے ضرور ترمینځه کیدله او د غسے د انسان ژوند خوار یوا ځے خراب ظالمانه او لنډ وو کیدے شي چه د هابز (HOBBES) د غه نظریه دے پورے تر څه حده صحیح وي چه ګڼو مخلوقو به د وقار او مشرۍ حاصلولو د پاره جنګ جګړے اخلولے وے او خاندانی یا قبیلوی شخړے به ئے ترمینځه پیښے را تللے کوم چه نن په دے ترقی یافته دور کښے هم راپورته کیږي. ولے دا خبره هیڅ ځائے نه لري چه د غه وخت هر انسان د بل انسان دشمن وو او د خپلو کښے ئے هیڅ یو والے نه لرلو. دا د عشق او مینے د فلسفے خلاف ده او د مینے محبت د موجودګئ نه سراسر انکار دے. د غه وخت به هم انسان د عشق جذبه ضرور لرله او خپلو کښے به د مینے په رسۍ ټینګ تړلی وو عشق انسان سره د ازل نه را روان دے او تر ابده پورے به هم د غسے ورسره وي

ے

"د دنیا ده خدائے له عشقه پیدا کړے    د جمله و مخلوقاتو پلار دے دا"

---

ے ۱۵۸۸ء نه تر ۱۶۷۹ء پورې.

حسن او عشق د نړۍ د هر شاعر او ادیب موضوع ګرځیدلې ده او دا ځکه چې په دې حقله به ئې څه وئیلي نه وي. په پښتو کې هم داسې شاعران او ادیبان نشته چې په دې حقله به ئې څه وئیلي نه وي. د دُنیا هر ادب له دې ساز و آواز نه ډک دے او د هر چا دپاره دا شایسته وګلونو ګرشوے دے. د نوروژبو نه پښتو ادب هم د حسن و عشق په رنګینو رنګین دے او په دغه حقله ډیره غټه پنګه لري. دلته دیو دوو نمونو ویکوالو په یک لړو اکتفاء کوو. عبدالغني خان چې په پښتو ادب کې د لیوني فلسفي په نوم مشهور دے په یو ځائے کې "حسن" ته داسې مخاطب دے.

ـه

"ده تپوس د حسن مکوه سمندر شي څوک تللے
څوک سپوږمۍ شي رانیولے څوک نه هره شي شکولے

حسن پلار د مینې او مور د عشق ؛ یکښې پټ دي تیول سپین او تور د عشق
ده نیال نظر هم زور د عشق ؛ په سرو شونډو ملئ ښکلے او ورد عشق

دا بابا د سر او سرور دے ... دا تغبیر د جلال او نور دے
دا مکه د ستر کو خندا کښې ده ... دا په هر کوڅه کښې طور دے

دا دم د نوم بس یو دا سیب ... د بهار سبب د رڼا سبب
د نوا د ژوند او ارمان قیصه ... د سرود د رقص او د ژړا سبب

دا جواب د نکو نوسوالونو دے ننشته هیڅ د ژوندون بل جواب
داصوفی ته محراب او منبر بښی لیونی ته کباب او شراب

---

دے د خیال او رنګ دنیا کښې دا پلو شته د مینې دیار ده
داورحم پیغام او وعده دوصال دا لیونے غلام له دلدار ده
دا د مرګ سبب دا د ژوند ضرور
دګناه تعریف او معنیٰ د نور

---

دا ګ عشق وجود دا ګ مینې راز
دا ګ سوز خوند دا مستئ د ساز

---

هر نظر ئے شراب دی مستئ ډک دا دروح لیونئ میخانه ده
دنیه ده او آقادزړه راز دے د ژوندون او جنت افسانه ده

---

او نباغلے سید انوارالحق کاکاخیل دحسن او عشق په حقله
حمید بابا په دیوان خپله مقدمه کښې داسے لیکی ،

" په بنیادم کښې علاوه د نورو بے شماره خاصو او جذباتو
عادتونو او خصلتونو مینه او محبت هم قطع نظر د دینه
چه بنیادی محرکات ئے څه دی ؟ خو یوه فطری جذبه ده
چه له ځایه د زړه سره پیدا ده او دده په خته او خمیر کښې

ز شروع دا سے آخپلے راغلے ده مینه د هر مادی او غیر مادی د هم جنس او غیر هم جنس سره کیدے شی نو دومره ده چه هر کله دا په خپل کیف د عامو حدونو نه ډیره وړاندے شی او شدت اختیار کړی نو عشق ورته ویلے شی. عشق په اصطلاح کښے هم هغه د حد نه وتلے مینے یا تقاضے ته وائی چه یو بنیادم ئے د چا سره یا د چا دپاره لری نو عشق د ظاهریدو دپاره په سر کښے یو مادی او مجازی او چه ترقی اوکړی نو یو روحانی او حقیقی مرکز یا مرجع غواړی چه طالب د خپل مطلوب سره قرب بلکه توصل حاصل کړی او څه وخت چه دے هغه مرکز ومومی او مقرر کړی نو عشق ئے څرگند شی دغه مرکز یا مرجع ته معشوق، محبوب یا مطلوب وائی که مطلوب ئے خپله ذات باری تعالیٰ وی نو دا سے عشق ته حقیقی ویلے شی. د دے مطلوب نه جدائی بیلتون او فراق د عشق آغاز دے یا که وائے نو یوه روانه سلسله ده او قرب نزدیکت او بیا وصل ئے انجام دے۔"

د تواریخی قیصو نه په ډاگه ده چه حسن و عشق د هغه چا سرونه ټیټ کړیدی د چا د تورے د زور به چه په ټوله دنیا خوره وو او د هغه بادشاهانو سرونه ئے سر په سجده کړیدی چه د خپل سلطنت په غرور کښے به ئے د ربوبیت لوئے لوئے دعوے کولے او

هغه سرکشانو ظالمانو ته په ویر کړی دی د چا د ظلم د لاسه چه ډیر ے میانده کونډے او بورے پاتے شوی دی. حسن او عشق په هر وخت او په هر ځائے کښے په خلقو خپله سیکه منولے ده که په فرهاد ئے غرونه سوری کړی دی نو قیس مجنون ئے د نجد په صحرا کښے په کرمو شکو سملولے دے او په چا کڼ ئے خپل ملک او وطن پریښودے دے نو ډیر ئے د بادشاهئ نه ملتګی ته کښینولی دی.

• • •

"چه بادشاه زلیخا ئے کړه ګدا یه
پرے به نن دی په ځائے مینه تول دچا"

حسن او عشق غضب لری، حکم لری یو داسے طاقت لری چه عاشق به هغه ته کوی چه څه حسن وائی ته چه عشق غواړی دا وسپنے خبلے به سوځ پیریانو دیوانو سره به جنګونه کوی خو د خپل محبوب خواهش به پوره کوی حسن او عشق ته نه! مه! نشته ډیل نشته او که وی نو حسن او عشق نشته. حسن او عشق سره ژړا ده خوبه ده دے تکلیفونه او کړان دے خو بیا هم په خلقو کران دے او هر څوک ئے غواړی موسیقی دے له برکته ده او د شاعرئ خو روح هم دغه دے. د حمید بابا دیوان هم دے حسن و عشق نتیجه ده او هم دے له کبله د اُف اُف او وئ وئ غوسونه یدلے نخوے سورے د کاغذ په مخ په ټیک راغلی دی او د مُتره دو په نوم یاد ے شوی دی. حمید بابا هم عاشق دے او بل داسے معشوق په نه ده داغلے دے څوک چه له هر چا ښائسته او حسین دے او ثانی یائے

سه

نښته دے.

که آفتاب دے که مهتاب    که لاله دے که ګلاب
نه دے دا مخ د ماه دے    نه هغه د آب او تاب
په دعوی ئے په دروغ کړه    ستا د مینے په هرباب
تا به وخته تر خته    د سوسن ستا په جواب
سر نګون دا ستا له شرمه    نرګس تللے دے په خواب
په یوه پښه کاندے سروه    قصد د تلو ستا د رکاب
په نسیم کا ستا د حسن    د چمن په لور مآب
له خجلته بوټی د ګلو    ځینی پاسی په شتاب
ستا د تن په لطافت شی    د سمن صفا حجاب
سرو ښانو دِ یاقوت کړه    سره په ونو کښے غرقاب
مشک دِ هسے دی وَ خط ته    لکه مشکو ته تراب
نرګس کو زګوری له شرمه    ستا د سترګو په جواب
آب و تاب کړه ستا د غاښو    شرمنده دُر د دریاب
ستا د مخ له شرمه و نغښت    ښاپیرو مخ په حجاب
ستا مزرو سترګو حرام کړه    د حرم په هوس خواب
کشتی غوندے ولاړ یم    ستا د سترګو په قصاب
زر په زر به مے کړه غوښه    ټکړو په سیخ کباب
له حُباب دِ آئینه شی    دَ مخ عکس ته دریاب
په فلک ستا د خو بیئ    هر ښائست کړی سیماب

ستا حسن و دریاب نه　　غیر حسن دے حباب
په دے شمارم صفتو نه　　شمارم ستوری په حساب
الغرض تر همه ښکلو
ستا خوبي ده انتخاب

او هم د غه حسن دے په د حمید بابا دیدن په رکونو کښے وینه ترپکو کړیده، زړه ئے ورته بے واکه او بے قراره کړے دے. په زړا فریاد او غمونو ئے سر کړیدے. خوله دے هر څه ورپه انواهغه د اشنا د غه یو غم د ټورو ډیرو غمونو نه د خلاصی سبب کنړی او دیر په خوشحالی او دو نړ تندرنا ئے نه غمی ئے

واه! د مینے کاروبارے!　　د سولئ په سرو زکارے!
تر سبزه لاندے کوهے　　د بسنو دیاسه خاره
د خودرا ئے دپوزے نته　　د سرکښو د سربا ره
د بے غم د زړه په څونه　　د محنت بلا کو ماره
لکه زهر په شرینے کښے　　دل آرام او دل آزاره
د خوبا نو ته رغبه　　د عاشقو ته رببا ره
د دره د منو تکیه کا هه!　　د غمګینو غمګساره
کله وصل وی که هجر　　دوا ره ده وژله کړی یکباره
خیږی ساه په دواړه رنګه　　لاو بو وی که نه ناره
په ساږی دیار له یاره　　ځان کوینه که اختیاره
بادشاهان په ګدا ئے کړے　　دیوه دیدن دپاره

صدقه په يوه مخ کړے — خلقه هزار دفتر ا ره
عاقلان د هغه نو — مسخره کړے سحرکاره
نوشاګرد پورے استاذ کړے — بیچاره غریب ناچاره
د شیطانو طائفه کړے — دے ندانو خدمتګاره
نو مرئي پورے خسبتن کړے — شرمنده او شرمساره
عزيزان د خلوت بوزے — ګرځوان خيرے نرباره
په کړئي کښے وسرئي ته — خوښو چارے کړے د وخاره
د حيا د وقار خلق — بے حيا کړے بے وقاره
د تقوی اختيار خانه کړے — په کمئي کښے نار په تاره

خار د ترکو بلا عشقه!

د حميد بلا بر دا ره!

حميد بابا هم په دينه کښے لکه د نورو عاشقانو سر په تلی کښے ايښودے دے. دعشق هو پيغور نه غاړه نسته ولاړ دے. په دار او سنګسار راضی دے. په دين او ايمان اخر نه دے. د معشوق هر نا جائز ورته جائز دی. او د عشق په کار کښے ئے هرے قربانئ ته ملا تړلے ده

سه

"که سر تور دعشق په تور شے مه شرمیږه
د جمله و لويو سر پيغور دے دا"
"که منصور غوندے په دار او په سنګسار شم
نشته دا چه ستا له مينے توبه ګار شم"

"یو ځنسړے بڼ د مینے په سودا کښے
اَڼه په دین اَوَ په ایمان نهٔ یُم هرګز"
"دا په دین د محبت لوی یه خطا ده
چه خطا وَ ته دَ تُورکو خطا وایمَ"
"که شاهان و تخت و تاج ته لری شوق
عاشقان تاخت و تاراج ته لری شوق"

حمید بابا ښکاد خوښیه وی. حُسن پرست دے چرته چه څوک ښائسته ژُوبنی نو زړهٔ وَرِوَ غورځُوی اَوُ دا شاید په دے وجه چه په دغه ښکلو کښے د ښپل اصلی اشنا د ښائست ځهٔ نخښے نښانے وینی

ـه

"هر یو ښکلے په زړهٔ د باز غوټے کا
کوره کوم یؤ به ئے یؤسی ښکار دچا دے"
"که ښکی وُبنے باز په زړکه باندے
هسے رنګ ے په ښهٔ مخ ښکی نظر خوښی"
"لهٔ دے صافه آئینه اوسه حمیده
په دا هسے و هر ښکلی ته حیرا نے"

د حمید بابا اصلی اشنا چرته لرے بل ملک ته تلے دے اوُ ورنه جُدا شوے دے اوُ د دغه خیالی حُسن یوُ جُل بیا په لید د لیه شپه اوُ ورځ په زړا دے اوُ د وصال په ارمان ئے دے۔

ـه

"که خوبان د درست جهان نیسم په خواکښې
نه شی نه شی د تا سود په بل نه ما"

"د شپه ځ په واصلانو په څه حال وی
چه ئې ډوا تره حمیده تښتې آرزو"

خو دغه تښته او خالی آرزو ده او تش خواهش دے د وصال په ارمان دے خو حمید بابا دا پوخ یقین دے چه د عاشق معشوق ترمینځه وصال ناشونے او ګرانه خبره ده. سه

"چه په عشق کښې کامرانی غواړے حمیده!
څه څه وائے چرته تللے ئې اوده"

"کامرانی په عشق کښې مه غواړه حمیده!
دا کیاه نه زر غوښېږی په داکوه"

په عشق کښې کامیابی نشته ناکامی ده، رسوائی ده بدنامی ده، د خلقو ټوټې دی مسخرې دی او خندا ده خو بیا هم عاشق دا پېښې په سر اخستې وی ځکه چه هغه پوهه وی چه په عاشقۍ کښې سپکوالے په حقیقت کښې درونوالے دے. په فقیرۍ کښې بادشاهی ده او په روسته کښې په جهان ځانله یو لوئے نوم پیدا کول دی. سه

"چه ئې سپک کړی عاشقی لکه سړه
هغه کس ترکوه قافه درونوالے کړه"

"که صورت د عاشق خوارلیدو شی څه شو
بادشاهی که په خرقه کښې دا ګدا"

"چې مجنون غوندې په مینه کښې ګمنام شي
د هغو په جهان وُخیژي نوم و نښه"

"که د عشق د ځوانۍ مرګو په عیش پوی شي
نور به خضر په دے دیر عمر پښېمان شي"

حمید بابا غواړي چې کوم غلط پښتو او غیرت چې پښتانه ئې ټنے وخت کوي او په جهالت یادیږي او پښتو ئې کفر ګڼلے شي که دغه پښتو او غیرت، د عشق په کاروبار کښې او کړے شي نو په اصلیت کښې دغه پښتو ډېر ښه پښتو ده او هیڅ بدي پکښې نشته دے.

۵

"چې د عشق په جهل ځان وژني ناصحه
کاش! که زه هم عبدالحمید هغه پښتون شم"

حمید بابا د حسن هغه ټولو ښکلو ښایستونو کوم ته چې یو عاشق راکښلے شي او په تعریف ئې نه مړیږي او د عشق هغه ټول واردات کوم چې یو عاشق ته د عشق په لار کښې پیښیږي، په مقله ئے د خپلو خیالات اظهار کړے دے. دلته د دغه کسر وار خوبونو د ځینې په مقله ځینې اشعار راوړے شي هیله ده چې لوستونکي به دغه کافي او ګڼړي او مناسب به ئې او شماري. او د حمید بابا د شاعرۍ داد به ورکړي. په دے ضمن کښې د ټولو نه اول:

"انساني جوسه" یا څهره ده چې د یو عاشق زړه او لړزوي او د ځان او جهان نه ئے بې پروا کړي او د عشق په سر ولمبوي

درېښولو ته ئې تيار کړې. ښائسته شکل، نمکينه جوسه او ښکلې کړه
دره ذ انسان دَحسن يو ضروري جز دے. اوږدے زلفے، براېر مخ
ښائسته ښکلے زامه، نرئ شوندے او دوغ رمت بدن د انسانی
حسن نخښه ده. او بے له دے هسے سپين واله، سور واله يا غنم
رنګی بے ځایه او بے معنی ده او کوری حسین یا د خپلے معشوقے
تعریف په څومره سینه ده دل کوی.

"دا مے خوا لره له ورا په دلبر راغے
يا له پاسه سنکته ز مکے ته قمر راغے"

"هیڅوک به دریغ نه کا ځان جهان ځنے په صبر
ودیتی که دا حسن او جمال دلجوئی د ستا
سل ځله که قصد وکړی نرګس په شوخو سترګو
هیڅ په هسکو سترګو کتے نه شی دوئ د ستا"

"چه ئے تا غوندے دلبر په ځنګ کښے کښینی
د هغو دماغ بلند وی تر اورنګه"

"د یوے د بلو لو حاجت نشته
په هغه کور کښے چه ناست ماه جبین ته ئے"

"دَ جنت حسن و جمال که په کمال دی
شرمنده دی ستا له حسنه له جماله"

---

ہے جو کہ سایۂ دیوارِ یار میں — فرمانروائے کشورِ ہندوستان ہے
(غالب)

"ډېر ستا ښېلې شينه ملا د جنت حورې
چه ئې ولیدے مخ دا ستا بیو نهٔ دی"

"ستا تر مخ پورے نور ښکلی
شو تر نمر پورے چراغ،

"خو شو ستا له ساده مخه مخ دنا وے
که هزار ځله ئې کهٔ زیورتّ طرف"

"کو ځیدے به خاپیرئی وے مخ پیتے
کهٔ جمال نهٔ وے دَ دوئی ستا تر جمال مخ،"

<u>زلفې:</u> دانساني حسن په ټولو کښې ډیره لویه او اهم برخه لري او داسے شاید چه یو عاشق هم نهٔ وي د چا معشوقه چه په سر کښې بوچۍ وي او دے به ورسره مینه لري. زلفې دانسان په حسن کښې ډیر زیات اهمیت لري. او دَ یو عاشق دَ زړهٔ قیمتي خزانے نه لکه د خامارانو تاؤ راتاؤ پرتے وي او دغه زړهٔ کښې په ټکونو او ځیچلو داسے زهر ورخواره کړي وي چه نهٔ هر مورے او د پارو ګانو دَمونه او ځیفونه ټول بیکاره او بے فائدے وي او بے له دے ئې هیڅ علاج نهٔ وي چه دغه خاماران په خپله راشي دم دلاسه ورکړي او په دغه زخمي زړهٔ ورته ملهم او پټۍ اوتړي.

دَ زلفو په حقله لکه د نورو شاعرانو حمید بابا هم په ستائنه نهٔ مړیږي

سه

"دغه ښکلا او دې دوه زلفو ته نظر کړه
حواله مې په زړګي دي منګور هومره"

"ښیا به څوک ته په زړه ندځا آویزان وشي
چه دِ زړونه کړل دَ تورو زلفو پړي"

"یوه ورځ به څو رحمیل مار د زلفینو
چه په دم دَ عشق پاړو شو زما رُوح"

"چه ورو وا چوي کمند د تورو زلفو
د بازار په ګډه یڼ ځ کاندے آهوان شوخ"

"ګډ شانه غوندے مے زړهٔ شکاف شکاف شو
ځائے ئې نهٔ مومم د زلفو په شکاف"

"کهٔ مے زړهٔ شکاف شکاف شو باک ئې نشته
شانه طوره دَ زلفینو په شبخون یم"

"په میدان د داد قدم نهٔ بږدي له کبره
که دَ زلفو وَ چوګان ته ئې سرکوزے کړم"

"زغلوي را پسے یار زنځیر د زلفو
چه د عشق په صحرا سر لکه مجنون شم"

"که هر څو شو پیچو تاب له ډیره شکه
ستا دَ زلفو په څېر نهٔ شو د سُنبل رنګ"

"چه په تیغ د تورو زلفو وُمرم سبا ځا
که مې بوځا د مشکو دروهي له تربته"

"چه ئې دلته باد په زلفو برابر شي
په ختن کښې شي قيمت ارزان د مشکو"

"لاړ به نهٔ شي څښتن تور د نور د زلفو
سر و مال که د حميد ځي په دا تور کښې"

**خط** په حقيقت کښې د غوږ د نوا او سترګو ترمينځه د سر د بخيتو نه لاندې نرم نرو پشم دار د ويښتو ته وائي، کوم چه د ځوانئ په وخت ديو هلک ياجينئ په مخ راټوکيږي او بيا ئې ځائي له ورکو تهوالي راسي په مخ موجود وي. ولې په شعرو شاعرئ کښې د زيات استعمال په وجه "خط" خپل مفهوم بدل کړې دې او مطلب ترې د هلک په مخ کړ ده تهوله زيره اخستلې شي اؤ د مؤنث په مخ ويښتنهٔ ترې ډير کم مدعا کيږي. د غه وجه ده چه که د ځينې شاعرانو ترڅه د خط مقصد هم مؤنث وي ولې لوستونکي ترې مراد مذکر اخلي اؤ په دې کښې هيڅ شک وشبه نهٔ لري چه د شاعر د زړهٔ ارمان د هلک مينه ده اؤ د هغه د غه تهوله شاعرئ د هم جنس له مينې کيس چا پيره چورلي داشناد. "خط" په حقله په خومره زيات شعرونه د حميد بابا په ديوان کښې موجود دي کوره که د پښتو ادب بل يؤ شاعر د ومره زيات ويلي وي. د غه کتې و شعر د نو نه دلته يؤ څو د نمونې په توګه راوړې شي.

ــه

"که کیږه دیار له خطه کرم کرم نهٔ یم
زړغونه په سمن زار شو زما زوړه"

"زړهٔ مې هسې په نو خطو ښکلو پریوت
لکه پریوزي وَ دوّ ته قلندر خوښ"

"څکه زهٔ کوم آسره دیار وَ خط ته
آسانیږي مشکل متن په حاشو"

"د مُراد حسُن څنې ځئ یا په رکاب شو
چې ئې یا خیدهٔ د خط غبار له مخه"

"چې ورېځ دیار د خط پرې باندې راشي
وَ دَ وي مې په لیمو باران د مشکو"

"لا ئې زهٔ له پښتو به چُور چُور ناست وُم
بیا ئې کهٔ راباندې خط لښکر د یاسه"

"دا زما دَ آه لوګې پکښې لیدهٔ شي
آئینه دِ دَ مخ نهٔ ده په خط زنګه"

"په راتلهٔ د خط پا ئمال شي حسُن هسې
لکه وُتړي په ګلو څوک غو یمنله"

"د تور خط لیکه ئې کړه په سپین مخ ستره
تور اوُ سپین زما د سترګو شو په داګه"

---

د څسوي زړهٔ اسویلي څوک وائي اتونه لوي    په سپین مخ ئې خط ګواه د کما جانان سوے دے
(رستا)

"هغه مخ چې د کعبې وه د دوو سترګو
مسلط کړو باندې خط مواس د کفر"

"يو حميد له توره خطه شکوه نه کړه
دې وبا کړه ټول عالم خراب تراب"

او داوس دې پورته شعرونو نه علاوه د "خط" په حقله رحميد بابا دا يو پوره غزل هم وکوري. سه

چې ئې اوليده په مخ د ګل اندام خط
بيا موند نور د آزادۍ ما غلام خط

خلاص مارغه له دام په دام کله ويسا که
په نيوه زمانا حق غوړه وى دام خط

په لمبه ئې د رخسار وسوا يرې شو
چې ئې کينيو په فراش د حسن کام خط

دا شنا د مخ د خط هيبت ئې وخوړ
چې ئې وليد په شرابو کښې د جام خط

خط د زيب د زلفو هسې پژمرده کړو
لکه راشى په کفارو د اسلام خط

د پسرلى وريځې نه وى بې باران نه
په رښتيا کړى د بوسې زيرې پيغام خط

د مقصود ډرې ونه ليده تياره شوه
صبحدم د يار د مخ کړه راته شام خط

زمرا هوسئ آرام په مین نوُن کا
ذړکوی شوړ بیاه دل لره آرام خط

زمانه به دَ هر سبکی بازار سوړ کړی
ماته ژبه کړی حمید ته دا کلام خط"

سترګې هم دَانسان دَحُسن یوُ ډیر ضروری جزو دے اوُ هغه هومره اثر لری کوم چه د یوُ محبوب د ښنا ښت نور کړهٔ درهٔ لری اوُ د عاشق یا مئین زړهٔ له خپله ځا یه ی ځا یه کوی حمید بابا په دے حقله هم ډیر ښهٔ وئیلی دی . سه

"د رنجو په باب دِ تیز دسترګو تیغ کړو
نهٔ پوهیږم بیا به نوے کړے د چاوینے"

"چه په تورو سترګو تور رانجهٔ شی پورے
له یوے تورے بلا پاسی ستل نورے"

"چه دا ستا دَ خړو سترګو اشنائی کا
تل به ویر دی د هغهٔ په خپلمانے"

"ښهٔ دِ خلق په دا مراوُ کتو غوښ کړل
کرځوے سسته لیندهٔ په شیشت مغروره"

"له هغو سترګو ځوک څرنګه ژوندے شی
په خدنګ ئے د نظر زخم کاری کړی"

"چه ویرانے شی په تور د تورو سترګو
هغه ځونے به هرګز نهٔ شی ودانے"

"داهغه واړه دَ توره ستړګو توردی
په مدام مے زړګی وی په توراوسپین"

"که اور نه دے جدائی دَ آهو چشمو
نه به دو هسے تور شوے ځان دَ مشکو"

"ستا دستړګو دبنړو تومنځ حیران یم
یُو مے وژنی په سرو اور بل په نیزو"

"التفات مے داته باز دَ ستړګو نه کړی
که هر څو ورته طعمه دَ ځیګر نیسم"

"په هیچا بانده نے نیاؤنشی حمیده
چه دَ تُرکو ستړګو مړکه هغه توی لاړ"

تو هر کله چه زړه دَ ستړګو دَ بنړو په غشو سورے سورے شی دَ غمزو په توره بوره بوره شی اوُ دَ بیماری زلفینو دَ لاسه بنجوړ اوُ بے محال شی نو دغه سرے شرابی

**شونډ‌ے** دَ آبِ حیات چینه ثابته شی اوُ دَ عاشق بے آسرے زړګی ته ژوندون ورو بخښی اوُ څه قدر له سکون اوُ آرام ورکړی

ـه

"هاله یادکړم په بوسه خونخواره شونډو
چه دَ پان په شانے وینے کړه ځیګر ما"

"څوکو ترے ستا دشونډو نصیب نه شی
خدائے مے هیچکله دا هسے شهید مه کړه"

"دَ عیسیٰ تر دمه کم نهٔ دی حمیده
پټ په شونډو کښې د ښکلیو موسیده"

"په ژبه بېښي میکو نے شونډے د خوبانو
دَ هغو به کله مینه په مټے کیږی"

"چه ئے ستا آتشی شونډے په زړهٔ کړحی
څهٔ عجب که دَ هغو سینه کباب شوه"

"دَ سرو شونډو په آرزو دِ نهٔ پوهیږم
چه گلزار دے که تنور دے زما دل"

"څکه لاس لکه مگس په افسوس مږم
چه شاره شم د سرو شونډو له شربته"

"په حمید که په میکو نو شونډو مینه
زر به کښینی په حلقه کښې دَ مستانو"

"چه ئے شونډے تبسم تازه انګار کا
باندے زهٔ لکه سپند سوځ ته تیار شم"

"که ئے لب د شکرلب زبېښلی نهٔ دی
د حمید زبان په څهٔ شو شکر ریز"

دَ زلف ښامار خوړلی، د خط په اژ غونږ خمی شوی او د سترګو د پیلوړو په غشو ویشتلی شوی عاشق د پاره په دُنیا کښې ډیر مصیبتونه او بلاګانے پرتے وی چه د هٔ ته د عشق په لار کښې پیښیږی او ورځنه ئے تعلق او واسطه پریوځی هم له دغه ډیرو مصیبتونو نه یوه بده بلا؛

رقیب دے چه دهٔ نه معشوق نه د رسیدو په لار کښې خنډ دی اؤ د هر قسم مشکلات اؤ ګرانے ور ته پیدا کوی اؤ خپلے ځتے ئے نهٔ پریږدی. رقیب په لغت کښې څوکیدار یا نګران ته ویلے شی ځکه چه هغه د یوُ ښکلی حسین د څوکیدارئ نه د عاشق څوکیداری یوُ خوا ته کوی اؤ په خپله خپل ځان د دغه ښکلی حسین څوکیدار غوښتل غواړی نو لاڼ می ده چه د دے غلط اقدام اثر به په عاشق هم پریوځی اؤ هغه به هم د خښتے جواب په کاڼړی کوی اؤ د خپل زړهٔ تاؤ اؤ بړاس به وُکاږی. د رقیب وجود په هر ملک په هره علاقه، په هر ځائے اؤ د هر عاشق معشوق ترمینځه موجود دے. د هر عاشق ناسُور دے خو د هرے مینے د ځلقو لو سبب دے.

لکه د نورو شاعرانو حمید بابا هم د رقیب له لاسه ژړلو ډک ناست دے اؤ د هغهٔ د ظلم زور اؤ زیاتئ نه سر په اور دے اؤ په ژړا انګولا دے.

سه

"چه میدان د درست جهان را په نظر کړم
د رقیب په څیر بد کار اؤ مردود نشته"

"کافران به د کتار مسلمانان شی     که رقیب ے په ژړا وُترسیداهٔ"

"په دا خدائے چه د هر چا دے نهٔ کو وهیږی
واړهٔ وُم له رقیبانو په کوم خدائے دوست"

”رقیب کینہ ے خوا کهَوی هسے !
لکه مې په آب وخور کښې شی د چاکه”

”چه د عشق داب و آداب نیایم رقیب ته
داسلام دود دے نه وی د کافرخونس”

”ماوے غوخ یه کوم رقیب د آه په تورو
کفایت مے په ګنډ ارکښې نه وو نه شو”

”رقیب له لاسه دک له غویږناست یم
چه مے حال وایه د یار ته ژړا راغله”

”په دا ظلم مے دے کور د آرام وران کړه
رقیب په غیږ کښې پروت ئے خور په ټمه”

”دا نه ما په سرکوزی نه ئے نور ټمه ئے
چه رقیب دے په دشنام کړو سرفراز”

”ړیوانه د رقیبانو په سر کانړی
ما په خاوره ستا د در په تندی لوسنے”

مسلمان علماء لکه چه د عمر ونو راسے را دوانه ده په دوو ډلو
تقسیم دی یو د باطن خاوندان او بل ظاهری کسان دی - د
باطن مالکانو ډیرے وارے داهل ظاهر لاسه بیلو نه خوړلی دی په دار
ختلی دی قتل شوی دی او د ملک نه بهر ویستلے شوی دی د دوئ
منصور داوی چه د ریاکارو په شان ظاهریت نه کوی. بلکه چه
ئی نیته عمل کوی نو د هغه د خلقو نه پټ وی او خپل روحانی طاقت

چاته په وس نه څرګندوي. د ظاهریت خاوندان داسې متقي نه خوښه وي او بې ګناه بې خطا اهلِ نظر پسې راوانخلي او آرام نه ئې نه پرېږدي. د دغه نمائشي زاهدانو عابدانو او پرهیزګارو همېشه له دې اهل الله سره چېړچاړ او ورانه وي او بې ځایه ئې تنګوي خو کله نا کله په اهل باطن هم د دوئ د دې بدې رویې اثر وشي او په خپل نیک کښې ئې نښه پوهه وکاږي او دغه چلولي او دوکې نه ډک ظاهریت ئې خلقو ته ښه په ډاګه کړي داسې: شعار د شیخ سعديؒ حافظ شیرازيؒ او مولانا رومؒ په شاعرۍ کښې ډېر زیات موندلې شي او بیا د متأخرینو شاعرانو خو دا یو رسم ګرځېدلې دې چې:

"زاهد" واعظ او ناصح سره به ئې هیڅ تعلق نه وي ولې په خپل کلام کښې به ئې پې وچې خندې او ملامت او ډنه به پرې بړدي او پښتو ادب د نورو متقدمینو شاعرانو په شان د حمید بابا هم دغه دې سره نه لږي او په خپله شاعرۍ کښې ئې د دوئ شړوخ او پوست وکښلې دې.

سه

"دا د عشق طاعونې مرګ به ئې ارمان شي
که د زاهد ځان کو تلې شي ژوندی بیا"

"ډېرې ویا ړه زما دکار کا ده ښه وشوه
چې زاهد په ځیل د زلفو شو اسیر"

څه اور په اوچ واښه باندې څوک بل کا
هسې کار کاندې په زهد په تقوی څوک،

د لوېښي چارې نه اهله په مانه شي
را ته مه کوه ناصحه دا تکلیف

هیڅ له نه هڅه را ته مه وایه ناصحه
دا ونه کاری به هاله کړم چه اوزګار شم،

که په عشق کښې ځوانی مرګ مرمه ناصحه!
کاش! که بیا مومم د غمه مهینه فیض"

"هیڅ له شرمه را ته مه وایه ناصحه!
د برښنه له اوبو څه اندیښنه باک؟

"که ناصح ګرانې د عشق ګڼړی آسانې
آموخته آسان دې نه دې ګرم،

"چه په ما د صبر دم لولې ناصحه
خپله خوله ستړې کوې په دا چُف چُف"

"ځان به مړ د عشق په خیل کړمه ناصحه
وا به نه وړم نوم حمید هسې پښتون یم"

نونیر واعظ یا ناصح هر څه په وی عاشق ته نصیحت د ښه زړه
نه کوی د هغه په خوارو زار حالت ئې ترس راځی او زړه ئې پرې
سوزی او سم دم بنیادم ئې په داسې حال پیرزو نه شی کوم چه د
عاشق یا د مئین وی نو عاشق څه او کړی هغه مجبور وی او د

عشق نه صبر کول هغهٔ د پاره ډیر گران کار وی نو ځکه هغهٔ ته
د نصیحت کوونکی د غه وینا پوچ او فضول ښکاری او د عشق نه
د صبر تلقین پرے زښت بد لگی. هغهٔ که زړهٔ له هر څومره دادگیرنه
او دلاسے ورکوی و ہے د عشق خنډو خار او ازغے لارے نه نهٔ اوری
او صبر ترے کولے نهٔ شی.

سه

"څوک د صبر آرام نهٔ غواړی په عشق کښے
د ازل کاتب دی ښکلی په دا باب سخت"

"محبت را ځنے زړهٔ له واکه ویو ست
پورے نهٔ رسیږی هیڅ د صبر واک"

"که د صبر ستل قلعه ترځان چاپیر کړم
د سینهٔ مې له تاخته نهٔ وینم امان خپل"

"که هر څو په صبر زړهٔ ټولوم نهٔ شی
بے اختیاره لکه موم ویلے په نار شم"

"تاخت و باخت د محبت هسے لوټ پوټ کړم
چه مے یو اسباب د صبر موجود نشته"

"نهٔ منم نهٔ ازبکی د هغهٔ حسن
څو نهٔ ما د صبر څو نه تالا نهٔ کا"

"نهٔ او صبر سره لرے یو ناصحه!
په دروغ را باندے نهٔ شی دغه لاف"

"ځکه ما څخه آرام او قرار ورک شو
چې مې اوښکو کړو د صبر خانمان ړوب"
"چې اوبه به دِ د مراد د يوه شي بله
کۀ صدف غوندې په صبر کړې دهان چپ"
"هر چې راته وائې واړه کړونے يم ناصحه
بے له دے چې نۀ يم له خوبانو صبر کړونے"

او صبر هله پسته کيدے شي چې عاشق د عقل او مني او د عقل په لمسه او سپوږنه لاړ شي نو:

عشق او عقل سره څنګلو کښے لرے لرے دي او يو بل سره ئے روح نۀ کښيږي چې عقل وي نو د عشق سختے مرحلے نۀ ترسره کيږي او هغه سرے غوټے نۀ شي سپړو دے کيدے کومے چې د عشق نوکو نه په عن فن کښے سپړي او انساني غوښتنه تقاضا او تجسس تر څۀ حده پوره کوي او انسان په يو قدم تر عرشه پورے رسوي. د عشق او عقل داورانه د شروع نه را روانه ده او تر آخره پورے جاري وي. عشق تل اديبانو شاعرانو او عاشقانو په عقل بريالے ګڼړے دے او د عقل سپکه او د عشق درنه ئے وښلے ده. دغه وجه ده چې حميد بابا هم د حسن و عشق په ستائنه نۀ مړيږي او عقل ځائے په ځائے کړي.

"محبت څېرے ګرېوان زما تهول نهٔ کړهٔ
که پرے سل ځله وهی د عقل ستن لاس"

"لکه لوبے هلکان په لیونو کړی
عشق هسے مسخره کړهٔ عقل و هوش"

"چه په سر او مال سودا کړی عشق آغازه
هلته شی د عقل و هوش دانا دلال بس"

"دلالان د عقل پاتے شی بے دخله
چه په سر ئے خود آغازه که سودا عشق"

"ډوبوی په خپله ځان حاکم دَ عقل
په د عشق د ملک خراج ته لری شوق"

"که دَ عشق طفل څهٔ لږ ه ځله کړی بیرته
افلاطون تخته کړی سیده تقریر کج"

"چه د ترکو دَ جمال په جرګو کښېنوزی
افلاطون زما د عقل کاندے حج"

"دلته کار دَ افلاطون دَ تدبیر نشته
کار و بار کېږی د عشق وا ره په خپل سر"

"نیم جواب د ترکو نهٔ شم ورکولے
که په عقل ارسطو یا افلاطون شم"

اُو اوس د عشق و عقل په حقله د اپو ره غزل ئے هم را ذکر کړو

ـــ

د هر څو تر حيوان پر بوی ځان عقل
عاقبت د عشق په کار شو حيوان عقل

دقيقه پو ښتنه د مينې له مجنو نه
دلته نه چليږی هيڅ د لقمان عقل

د عشاقو په جرګه پوښتيده نه شی
که هزار ځله شی خان او سلطان عقل

د مجنون تر سادګۍ صدقه شه
زيرکی دا فلاطون په رو ښان عقل

هغه زړه دا څخه مينې بيزاری کړو
په ساتلو په ځار په قربان عقل

لاړ به کله شی د عشق په ستغو غاښو
دا په سمه لاره کښې ستړے ستومان عقل

لکه فرق د نور او سپين په رانده نه شی
هسے دے د عشق په کار کښې نادان عقل

لکه ګک د باد په مخ اودريدے نه شی
دے تر عشقه پورے هسے نادان عقل

عاشقی مجذوبه حال هغه حميد کړو
په نوک کښے ئے دے لود دجهان عقل

دحسن و عشق په معاملاتو کښے په انسان قسم قسم حالات او
کيفيات تيريږی هرکله چه د آشنا وصال تقرب او نزکت

حاصل وی نو عاشق د خوشحالئ نه په جاموکښې نۀ ځائيږی
او په څۀ وخت وصال پسے هجران او جُدائی راشی نو د فراق
په سرو غرغندو کښې داسے وريت پريت شی چه د وصال هغه
ټولے خوشحالئ ئے په تيره هيره حساب شی. پريشانی او
بيقراری پرے زور شی او هيڅ کار روزگار ته ئے د ده نۀ لگی
او د څار پانزيبو د شرنگا په خيال کښې مست له عالمه گوښه
نيولے يو خواته د خپلے خوندہ ژوند شپے او ورځے تيره
وی. ؟:.

"وصال او هجران" داسے او بد ساعت په حميد بابا هم تير
شوے دے او د شاعرئ ډيره برخه ئے له د غه سوزو سازه
ډکه ده -

سه

"ځان جهان مے د واړه ؤ وانه له فکره
چه مے فکر د وصال شو راته پيښ"
"هيڅ مے نۀ شی تسلی د يار په وصل
د طوطی په سوری ناستيم مخ په نمر"
"په د وصل په عوض کښې نۀ قبليږی
حميد څۀ کاندی داهسے ناقابل سر"
"لا به کله په وصال د يار کوتاه شی
اُميدونه د حميد دو رو دراز"

"خو چه داغوندی حمید خلعت د وصل
ترے نے وګانړی فلک په دینو سور"

"ما ته طمع د وصال ویرے د هجر
په یوه غولی کړه پیښی سندرے ویر"

"هغو قبر لره یوړه بله شمعه"
په تو برے نے په ذره یوړه د هجران دوب"

"د اشنا د هجر هسے سخت ساعت دے
لکه راشی په واته د صورت ساه"

"دوزخی غوندے په هجر کښے د ترکو
تر یوه عذاب پیځمه بل عذاب سخت"

"که سینه وهی که سر که ژاړی وینے
په خوب شوے په هجران دے نه دے کوم"

"چه د هلے وی تشنک د یار د هجر
تسلی نے د وصال په کوثر نه شی"

# "چه هر چا ته لاس په سر نیسی تعظیم کا
# زۀ مئین یم په دا خوئ د مطربانو"

# پند و نصیحت

دُنیا په مخ چه د کله نه انسان راروان دے نو هغه هم په دغه سوچ اؤ فکر کښې ډوب پروت دے چه ژوند څۀ شے دے اؤ د دے مقصد څۀ دے. انسان په دے حقله په دوؤ ډلو کښې تقسیم دے یوه ډله هغه ده چه د هغوئ ترمخه ژوند د عیش و عشرت خوندونو مزو اؤ خوشحالو نه د ډکو وختونو بل نوم دے. دا هغه خلق دی چه د خپلو خوشحالو د پاره د بل په څټ چاړه راکښیل د کمزورو وینے خښیل مرګ ژوبله اؤ بے آزاره انسان آزارول هیڅ عار اؤ شرم نۀ ګڼړی اؤ دا دُنیا هر څۀ ګڼړی.

خو بله ډله چه د احساس خاوند ه پوهه اؤ د ژوندی ضمیر مالکان دی د دُنیا ژوند یو عارضی اؤ لنډ وخت ګڼړی اؤ د دغه لنډ تنګ وخت کښې دائمی ژوند حاصلولو د پاره ډیر دروند اؤ ګران کار په سر ګڼړی اؤ د ژوند مقصد د الله عبادت اؤ د مخلوق خدمت

ګڼړی ځکه چه د صوم وصلوٰة سره سره دالله پاک لوئے عبادت
دبنی نوع انسان خدمت او انسان ته آزار نه رسول دی.
په دنیا کښې هم دهغه خلقو نوم ژوندے پاتے شوے دے چا
په دبنی نوع انسان خدمت کړے دے انسان له بانده دی چه په
حیثیت دا شرف المخلوقات د مخلوق خدمت اوکړی. ځناور جوړ
نه شی او د انسانیت او سریتوب په دائره کښې ځان وساتی. خود
نن په دے بد قسمته دور کښې انسان صرف د مال او دولت لیونے دے او
دالله پاک له نامه او د خلقو د خدمت نه ډیر لرے جار وتلے دے. د نن
په معاشره کښې هم د هغه چا اهمیت قدر او عزت دے چا سره چه ډیر
دولت دے. د ښه اخلاق او کردار خاوندان د نن په معاشره کښې هیڅ
ځائے او مقام نه لری. او تیرے پرے دا چه داسے خلق د ډیرے کرکے او
نفرت په نظر کتے شی او د غیر مهذب طبقے په نوم یادیږی. که لږ غور
وکړے شی نو د انسان ژوند هم د چینجو په قسمونو کښې د هغه یو قسم
چینجی دے چه ټول ژوندے صرف یو منټ دے یعنی په د غه یو منټ
کښې هغه پیدا شی لوئے شی ځوان شی د بال بچ خاوند شی زوړ شی او
مړ شی دا انسان د ژوند هم څه برخه خو په نادانئ او وړوکوالی کښې تیر
شی او په ځوانئ ته اورسی نو د عمر نو فکرونو او سوچونو یو لوئے
جنجال کښې اونخلی او لږ عمر پس بوډا شی او ژوندے په نشت حساب
شی او څه موده پس داسے فنا شی لکه چه په دے دنیا کښې هغه چرے
هډو پیدا نه وی نو هر کله چه د انسان ژوند دومره بے ثباته

لنډ تنګ اؤ بې مزې دے نو بیا ولے یو انسان دبل دینو خنبلو ته توے ناست دے. دنپلے نیتے غتولو دخاطره بل ولے لګه دقربانئ دګډ وری داخملوی. کاش! چه داسے نۀ وے دے بیا هم دُنیا دداسے ځناورتوب نه ډکه ده که هرڅومره دده ځناورتوب خلاف نعرے پورته شوید ی ولے دَ ځوتنو نه زیات پرے پاهم وزره داخلاص امنا نۀ ده کړے نن د اسلام اؤ مسلمانئ دعویٰ کوونکی دِلږ نپل ګریوان کښے سر ونه کړی چارچاپیره ماحول دِ وګوری چه څومره تنه دَ مسلمانئ دنوم حقدار ګرځی اؤ څومره کسان دمسلمانئ په نوم دَ کفر اؤ الحاد ملګری دی شاید دکفر اؤ الحاد د ملګرو تله درنه وُ خیژی. موږ اؤ روژه خوځ پریږده دانسان ! ناروُل اؤ نزلوُل خوځ تور دے حده دی چه بچپله شیطان هم ورته حیران ولاړ دے. هغه انسان چه الله تعالیٰ دغوره مخلوق په خطاب نمانځلے دے نن د ځناورونه هم په هورته لاندے اؤ پریوتے دے اؤ لاڅ په لاندے روان دے. زمونږ قامی تنزل نوبت اؤ عاجزی هم ددغه غلطو عملونو وجه ده. هغه قوم اؤ خلق چرے هم ځ په ترقی اؤ پرمخ تګ نۀ شی تو څو چه خپل قومی روایات ترهغه وُ نه ساتی اؤ پرے عمل وُ نۀ کړی. زمونږ ټول قومی روایات د اسلام روښانه اُصولو سره تړلی دی اؤ ترڅو چه مونږ د اسلام دغه حکمتونه اؤ روښانه نصیحتونو نه لوے اؤ په پوره یو تر هغه زمونږ ترقی اؤ خوشحالی ګرانه بلکه ناممکنه ده. دنیا ته پیغمبران هم دده انسانیت سوز حرکتونو خلاف ونته په

رحمت را غلی دی۔ اصحابو اؤ اولیاؤ هم دے جهاد پسے خپل ملکونه
پرېښی دی اؤ نورو ملکونو ته د خلقو سمولو له تلی دی. داسے یؤشلی
اؤ ادیب به هم نه وی چا چه به په خپل نیک کښے دغه غیں سړیتوب
اؤ ناکاره کارونه غندلی نه وی۔

غرض په هر دور کښے حساس اِنسان ظلم زور زیاتی اؤ جبر ته بد
اؤ سپک ونیلی دی اؤ انسان ئے په خته ناخته طریقه دَ شر نه خیر پلؤ
ته راوړلو کوشش کړے دے۔ په دغه مبلّغانو، مصلحانو شاعرانو او
ادیبانو کښے حمیّد بابا هم شامل دے چه ناجوړو اؤ دنګوړانو بیمارانو
ته دَ خپل توفیق اؤ طاقت مطابق دارُو دُرمل ښئی د ښۂ اخلاقو
خپلولو نصیحت کوی اؤ د ژوند دبے ثباتئ ښو دنه کوی۔

ـه

"دُ نیا له سرایه تلۂ دی له اِرمانه
که پنځه کاله ژوندون وی که پنځوس"

"د خپل دم دَ چلید و ته غوږ نیسه
هر نفس د تلو آواز کا چپ چپلا"

"چه دَ مرګ خوارۍ په خوالرے خنداکړے
نشته تا غوندے حمیّده شوخ اؤ شنغ"

"اوس دِ هیڅ د خندا خو نه نشته حمیّده!
چه دِ دُ وژل په مرګ دا نور هسې ولی[۱]"

۱ هر زنده چه د مرده په قبر ورشی
ئیں دے هومره نصیحت په دا دُنیا
(رحمان بابا)

نو هر کله چې د دُنیا ژوند دومره لنډ لنډ او بې اعتباره دے نو په کار دا چې په سړے په دے دُنیا کښے د هر چا سره په خندا خوشحالۍ خپل وخت تیر کړي. هر چا سره په ژوندتون نیکے خبرے وکړي او د بل زړه د ونه خپل زړه د ونه وُګټي.

"په خدمت به دِ جهان د وړاندے درومي
که دِ مهر لاس کړے وړاندے لکه صبح"

"نرم پوست سړے سینه د ر لره شا ئ
مه شه هسے اور لمبه لکه ایسوړے"

"په خندا په دانړه وُ چوُلی د خلقو
جفا کښه، ښا نه اوسه تیر مه شه"

"هغه مه پسنده په بل باندے انصاف کړه
چې ئے نه پسندے په ځان باندے مانم"

دَ حمید بابا خیال دے که یوُ انسان په بل ټنه زیاتے او هم کړي نو هغه دِ صبر نه کار واخلي او د ده د غه سختئ دِ په ژوندتون ئ وُزغمي ځکه چې ښه اخلاق بهادري او او چتوالے هم د غه دے چې سړے غصه او قهر وُنغاړي او د جنګ جګړے د په ځائے خپله بدله په ښو اخلاقو واخلي خپل زړه د حسد کینے او بغض نه لرے وُساتي او هر ځائے ښیني صفات زړه وُلري. کامیابي او کامراني هم په دے راز کښے پټه ده او هم د ښه اخلاقو او اوصافو په وجه خلق لوړ او جګ مقام ته رسیدلی دي.

"د یوسفؑ د مخ د یوه ښوه هله بله
چې ئې سور کړو په ښپېږ وېرا درنځ
د میوې د سوري ژ نه ښا په ښادي
خوځې نه کړي مخامخ وته د نمرنځ
وهرچا ته به سرخرو یه لکه ګل شې
که په ویښو سره وېنزې د ځیګر نځ"

خوله بده شامته انسان هم دا ده نیا د ژوند مقصد ګنړلې دے او د دے د حاصلولو د پاره جبر، زور، ظلم، نا یا تے او استبداد هرڅه جائز او روا ګنړي خو په زور ظلم چا کلي خپل کړي نه دي یوه ورځ دا سے هم راشي په هغه ته د خپلو بد و میوه در ورسي او دا سے سرونه خوري په بیا په ارمان تیر وخت پسے لاسونه مروړي او بیا ته ئے راستنولے نه شي.

"چه په سوک سره څوک حق له چا وکاږي
دا هم نه دے په معنیٰ کښے ښه سلوک"
"د لرم په شیوه سیک ورمري بے قدره
هغه څوک چه ئے څوک زاړي له لښو"
"د مظلوم د آزار غشے ورسا سکي
هیڅ ګذار ئے خطا نه دردمي عبث"
"درځ به نه شي د غم شپه په هغو خلقو
چه په باب ئے په دعا کا هر سحار ځلے"

"صبا ورځ به ئې لغته په شا وُ خورے
مهٔ شه نن په یوهٔ سوک وچپاته کړم"

انسان په ځائے چه په بل انسان ظلم او زور زیاتے وکړی که چرے هغهٔ څخه په نرمه او پسته ژبه خبرے اوکړی نو شاید چه له دغه ظلمه ئې ډیر او دائمی اثر وی او تر عمره عمره په پسته او خوږه ژبه د خلقو زړهٔ ونه قابو کېږی او داسی کوم چه هغهٔ په ډیرو ظلمونو په خپله قبضه کښې راوستی نهٔ وی. [1]

"لکه وُړی کوئے له میدانه پسته ژبه
نهٔ شی وړے په تیرهٔ کړی شمشیر کوړ"
"په هغو لکه جهان خلق ښکېل یږی
چه په خُله کښې غوړه وی نبا تترابه"

انسان په حقیقت کښې هم هغه انسان دے چه د ژبے او لاس نه ئې چاته نقصان او آزار وُ نهٔ رسی[2] د بل په کار راشی او تر خپله وسه د هغهٔ امداد او دا ډکېږنه وکړی انسانان ټول د خدائے تعالیٰ مخلوق دے څوک هم د یو بل نه اوچت او ټیټ نهٔ دے د انسان فخر او لوړوالے صرف په اوچتو اخلاقو دے او د بل په درد دردیدل او په کار راتلل د انسان د ژوند یو ضروری جزو دے. [1]

---

[1] بُت خانہ کھود ڈالئے مسجد کو ڈھائیے ؛ دل کو نہ توڑیئے یہ خدا کا مقام ہے" (آتش)
نیک شراب سرود کوهٔ عبدالقادره ؛ خو یو مکړه آزرده د مسلمان زړهٔ " (عبدالقادر خان خټک)

"چې په خپل صورت اغزي سيځلې نه شي
بل نه وي رسوي د تيغ آلم
د يوه تن اندموونه دي بې شکه
لوئي هلک بنيٰ آدم په صورت سم
نه هم هيڅ له فرښتو زړوکړې نه ځي
په چار پا ئې بوي دا نور بني آدم
آدم زاد دي د يوي وني ښاخونه
چرته ته ښاخ د زعفران شوي نور شرشم"

انسان له پکار دي چې د ډير عجز او انکسارئ نه کار واخلي او خپل شان ډير پانه کم او لاندې اوګڼړي خاکساري د انسان د مخ رونړئ برتري او کاميابئ ښخښنه ده. خاکساره انسان چرې هم خدائے پاک بد نه ګڼي او بربادئ له نه ورکوي او تل تسکين قلب اطمينان او آرام ورته حاصل وي.

شعر

د شهيد په شانې خدائے زما کفن کړې
دا په خاورو د نيستئ خير ئې ختې"
"سر کوزې دې ښنا نه د سر لويئ
د يوسف پايه بلنده شوه له چاه"
"ګڼ د ښکليو په دربار مخ رونړې ښواړې
آئينې غوندې کړه نور په خاکستر مخ"

"هر خاکسار چه خاکساري نه کا ښه نه کا
هر څوک ښه ایښي په خپل رسم و رواج"

"چه په اصل کښې له خاورو پیدا شوې
وې ننګ که خاکساري کړې ناخلف."

"اطلس پوش د دیار نه ما وشړې نه کا
شاړ نمن کړو آئینه غوندې بستر ما"

"وایه سپک ښه دې که د روند د سر پیټرې
فقیري درلره ښه ده امیر مه شه."

"سرخروئي به یې د لعلو شي حمیده
که په خاورو کېږې له خاورو نه خوار کښېني"

"چه یې وړکه کړه لوئي په خاکساري
اوس حمید شو په اصلي وطن بیا؟"

"د حمید محموده را ښیه په خپله
کمینئي لره کمال نه ما آیاز را"

"دلته ځان تر سپیو کوز ګوره حمیده
که هورې تر فرښتو غواړې مقام لوړه"

د څینو کسانو دا لویه او غټه بد قسمتي ده چه د حالاتو په لړ کښې تبدیلي
بدل شي مال دولت راتلو څخه یې دماغ کښې د غرور او تکبر نشه پیدا شي
او سترګې یې آسمان کښې شي. دا سې متکبر او مغرور خلق حمید بابا څه
په ښه نه ګڼلي.

"چې ئې بند دے لہ کبرہ هوک په تندی باندے
دا دستار به دِ کوز پریوزی په غوږ کله»
"د نمرود ماشی قیصه کړه درپه یاده
که هر څو ئې په خپل ځان باندے غره»

حمید بابا داسے خلقو ته هم ډیر په سپک او د نفرت په نظر کوری څوک چه پخپله خو هیڅ حیثیت او اهمیت قابلیت نه لری ولے د پلار نیکهٔ په ادچت او لوی نوم بانزے او لافے وهی د پلار نیکهٔ په لوئے او دروند نوم څوک هم لوئیدے او درنیدے نه شی ترڅو پورے چه پخپله څهٔ کارنامه او د تعریف او صفت جوګه کارو نکړی.

۵

"څهٔ غلط دے پوهیدلے ددو هیدلے
دا غره تللے په اصل په نسب
هر سړے په خپل شناخت باندے زیبا دے
نهٔ د مور په زیبایئ او نهٔ د آب»
"چارے واړه په حسب نهٔ په نسب دی
تر بنده بلالؓ ځار شه سل اصیل»

حمید بابا غواړی چه د هر انسان وینا او خبرے دِ دهغهٔ کردار څخه برابرے او سمے وی یعنی چه څهٔ وائی هغه دِ کوی هم. دا نه چه په ژبهٔ ئې یو وی او په ځنډ بله. ددا سے خلقو په حقله څهٔ ښهٔ وائی.

۵

"بے کردارہ گفتار محض سردردی دہ
موندہ نۂ شی دَ مراد مغز پہ دا پوچہ،
"کہ کردار دَ حمیدؔ سم پہ گفتار نۂ وی،
پہ ناوخت دے دَ سحر بانگِ خروس"

د حمیدؔ بابا پہ نزد دَ کردار اَو عمل خاوند دهر اهمیت ور دے اَو بے عمله انسان دهیخ نوم اَو مرتبے قابل اَو اهل نۂ دے۔

سه

"چہ کوے دِ ا ور پسے د عمل دی
بیا بہ نۂ موے غم پہ احسته،
"بے عمله علمیت ختہ بکار نۂ دے
لکہ شبځہ تر مُلا اوتړی درسته"
"بیهوده دعوی پہ ځلے دخیلی کړے
چہ کاروتہ لہ تا نۂ شی دخیلہ "
"دم قدم ئے پہ مذهب دعشق عمل دے
مسلمان خدا لے لوړه ورشم کہ جهود"

تا سو اوکتل چہ دکردار اَو عمل خاوند دحمیدؔ بابا ذہنۂ تہ څومره نزدے اَو جوخت دے اَو دا موهم اولیدل چہ بے عمله انسان تہ ئے څومره سپک کتلی دی اوس راځئ دظاهردار و او دریاکارو ملقو پہ حقله ئے دا څوشعرونہ هم وګورئ۔

سه

"په نارے وَهلے په زوره ذکر بولے
نۀ دے ستاله ذکره خدائے بلل غرض"
"په جامه لے وُ مهٔ غلین ه هوښيار شه
دا با دام نهٔ لری مغز يو فلوس"
"بُت پرست دائی حميد وهغه کس ته
چه بندګی کوی د خدائے په روِيا کښے"

حميد بابا هغه خلق ډير خوښه وی چه څوک د قول اَو وعدے پابند وی او په هيڅ حالت کښے له خپلے وعدے نۀ اَوړی اَو نۀ ئے ماتوی

"په دروغ و عده کول د کوته زنتيت دے
دکوته په سر به څو زغلی سالوس"
"قول اَو بول په ژوندون نشی ئوته وے
څکه ځان په قول ورنی پښتانۀ"

دَ وعده خلاف انسان نه علاوه د حميد بابا کنجوس اَو شوم سرے هم ډير بدی شی اَو دا سے کس لۀ ليدل قدر له هم نۀ غواړی څوک چه ښۀ مالدار او اميرو وی اَو دغريب اَو حاجتمند حاجت نۀ روا کوی.

"چه نۀ اوخوری نۀ ئے ورکوی ما مۀ ئے وينه
که په کنج بانده په خيرے د مار کښيني"
"په نور چا يوه روټئ خوره وے نۀ شی
په خپل ځان بانده مالونه د جهان خوری"

د شرافت او ښه خوئی تقاضا دا ده چه سړے د ژوبل په ښیګړه او په کار راشی او هر څوک د خپل احسان په زنځیرونو کلک او مضبوط وتړی۔

"له دښمنه امان مونده که په عدوان نه شی
د احسان قلاد ترغاړه کړه چاپېره کوه"

"چه دا وسپنو زنځیر شلوی په کوتو
هغه ډیو په اومه تار د احسان نښلی"

حمید بابا وائی چه هر مجلس او محفل کښے خبره کوے نو ړومبے پرے ښه سوچ او فکر کوه هله پسته د خُلے نه خبره وکاږه ځکه چه په بے ځایه او بے موقعے خبرو سړے ډیر بد او سپک لیده شی۔

"څو د ښه د فکر شخوند زده کړے نه وی
چپ شه مه کوه خبره لواړه لواړه"

حمید بابا د مخلصانو، رښتونو، او سپینو زړو خلقو په مرسته او دا د دے او چاپیره د لباس، چل ول او دهوکے تعلق سا تلو سخت خلاف دے۔

"کېږدره آرام مونده لے په اخلاص وے
تا به نه کړه چاته زړه په لباس"

"که د پښتو لره دا نغے ته ضامن یم
که څوک ډیر له د رنده کاندے اخلاص"

"مخلصان په جهان نشته که پیدا شي

حمید خاص بنده محکوم دے د اخلاص"

اوس راځئ د اخلاص په حقله نورو اشعارو نه پس د حمید بابا د اولاد ادب او بے ادبئ په حقله هغه ښکلی خیالات هم وګورئ چه تر او بال بچ د ادب عمره عمره به زمونږ لار ښودنه او رهنمائی کوی.

"نازولے څوک نه اخلی ادب — او د سوری نخل نه نیسی رطب

د نیوه مه شه هغه څوک په خوا پورے — چه ئے نه نیولے درس وی نه مکتب

په غوجل کښے بارے خر او چرګ ښه دے — نه په خونه کښے جاهل او بے مطلب

چه پیدا شی یو ناکس په قبیله کښے — وړاندے وروستو حبطه کاندے نسب

د پسر په نیک و بد و پلار یادیږی — دا خبرے په جهان کښے مجرب

په سواره باندے ئے ګوته شی ایښودے — چه ئے اس برابر نه کړی په جلب

په زړه مهر په خوله قهر څوک ئے نه بویه — څه ښه وائی چرته د باهلته ادب"

یوسفؑ هله شو لائق د پادشاهئ

چه ئے وخوړے څپیړے د غضب"

او اوس اوګورئ چه حمید بابا د دوست اشنا څخه دیاری دوستی ساتلو ته و مره په حق کښے دے. دوست سره د بیوفائی په ځائے مرګو خوشحاله دے ولے چل ول او بوسولاندے اوبو بیولو ته کله هم تیار نه دے.

"پروت په وینو کښے لت پت ښه یم په پټ کښے

نه د سرو زرو په تخت باندے بے پته"

د حمید بابا د پند و نصیحت دا خو شعر و نه هسے د رځے نه یو ځونګ ووکړ نړه د هغهٔ دیوان ته داسے ډیرو شکلو اؤ سنبالسته ؤ خوږ و خوږ و نصیحتونو نه ډک دے اؤ د ژوند د هر اړخ په حقله ئے د غفلت په خوب اُوده اؤ ناآهلو خلقو ته د بیدارئ غږ کړے دے۔

ے

"په ناآهلو ته ئے څوک له ځلے ؤباسی
دُر دانه کاندے د ځپلے وَینا پُوچ "
"دَ غفلت په خوب اُوده خلق ئے نهٔ آؤری
که حمید ناره وهی لکه جرس "
"دُر اؤ لعل ورکوُل په ویریانهٔ شی
بے له ما چه در ته پند وائیم ویریا "
"له دے هومره سر درده چه ئے کاندی
د حمید دے نصیحت ویئل غرض "

---

که نه وے لیونتوب رهبری کړے
افلاطون غونډے به مړ وُمه ګمراه "

# حقیقی مینه

د دُنیا هر منزلِ مقصود ته د رسید و خپله خپله لار وی او بے د دغه
لارے د کړاؤ او سختونو غمونو نښان چرے هم خپل پړاؤ ته رسیدے نه شی
د دُنیا او عقبیٰ دواړو د دوستئی شرط همت او حرکت دے چا چه همت
او حرکت او کړو نو ځه ئے بیا موندل او چا چه همت بائیلودو نو هغوی
په سمه لاره کښے پاتے شول او د هغوئی ارمان او غوښتنے هم د هغوئی سره
ختم شولے. د خپل مقصد تا وے په دُنیا کښے هغه چا په عیز کښے نیولے ده
چا په لاس کښے چه تُوره ده ټوک چه د هرے سختئی او تکلیف مقابله
نیته په نره او حبکه سینه کوی او تر څو چه خپل مراد ترسره نه کړی
قلار او په آرام نه کښینی، کمزورے بے طاقته او بے تُورے انسان عُمر له

ډېر لټو او ګډ اړلاندې راغلي دے او هېڅ شی له ذلیل او خوار پاتے شویدے
لکه چه ښکاره ده هر مقصد او منزل ته د رسیدو دوه لارے
دي. یوه لاره اوږده که پېچونونه ډکه او ځنډو خاړه او بله لاره نیغه
سمه او صفا ده. ځینې خپل مقصد ته ژر اورسي او ځینې پس. ځینې ډېر تکلیف
او مصیبت ګوري غمي او ځینې کم. په هرحال په څه نه څه شکل انسان خپل منزل
ته رسیدل غواړي او د خپل نه پوره کیدونکي ارمان د غوښتنو پوره کولو
کوشش او تکل کوي په دغه منزل مقصود ارمان جانان او زړه غوښتنه
کښې حقیقي محبوب هم شامل دے چه د انسان د زړه لوی آرزو خواهش
او طلب دے او په انسان واقعي انسان وي حیوان نه وي نو د دغه حقیقي
اشنا د خپلو لو په فکر او سوچ کښې به شامدام بوخت وي او د در رسیدو
لارے کودرے به ورته لټوي. د دغه حق طلب له نو ځینې خلق د علم او عقل
لمن راټینګه کړي او د دغے په رڼا کښې د حق په لوري روان او یون کوي.
او ځینو خلقو د حقیقت د دوستئ او اشنایئ له د عشق لار اختیار کړے وي
د لار د دے بلے په نسبت آسانه، نیغه او صفا ده او دومره تکلیفونه او
مشکلات پکښې نه ترمخه کیږي. لکه څومره ګرانئ او مشکلات چه د علم
او هوش په لاره کښې پیښیږي.

مجازي عشق د حقیقي عشق پوړئ ده او لکه څرنګ چه بے پاټکو او
پاشتکو د کوټے سرته ختل ناشونکي دي د غسے حقیقي عشق ته هم رسیدل
بے له مجازي عشقه ګران او مشکل دي. د هم جنس یا غیر هم جنس مینه
انسان دومره اوده ړدئ په ځینے کسان د دغه درد او بے قرارئ تاب

او طاقت ئې او نه پاتې شي او د شرابو په جامونو ډک او ډوب شي ولې ځینې خلق داسې هم وي چه د دغه تکلیف په پرانستې سینه مقابله او کړي او دغه سوز او ګداز نه خوند واخلي او عاقبت د دغې درد او مجازي معشوقې د بې پرواسۍ له کبله د بې نیمګړې او عارضي دنیا نه بې پروا او زړه توري شي د مینې له لارې چونکه مجازي عشق آګاهو نه ځنګل پل او اغزي بوټي یو خوا ته کړي وي او د عاشق د زړه نه ئې ټول خیرې ګچیرې توکلې وي نو اوس د غه پلو د مینې نه د یو ډک زړګي رجحان میلان او رغبت پکار وي او دغسې د مجازي مینې په پوړو ختلې انسان ژر تر ژره حقیقي عشق ته اورسي او د انسان د ژوند یو لوئې مقصد غایه او نصب العین ترسره شي.

اوس که د حمید بابا کلام لږ وڅیړلې شي نو معلومه به شي چه هغه هم د دغه مجازي عشق په پوړو د حقیقي عشق بام ته ختلې دې دهغه د ژوند ړومبۍ برخه د ځوانۍ په وړ مومسته او ولولو او جذبو نه ډکه د مجازي لیلیٰ د تور خط زلفو او سرو شونډو او ننګوټو اتول ښکاري او د ژوند اخیري برخه ئې د حقیقت سره تړلې لیدې شي او بیا وروستو هره ظاهري مجازي وینا ئې حقیقت پلو اشاره وي.

"حقیقت به د حمیده ور معلوم شي
که ئې غور په نرا نه څوک د مجاز کړتا"

د حمید بابا که مجازي سینه ده نو هم پاکه صفا او سوچه ده او لمن ئې د ګناه په داغونو چرې هم داغداره کړې نه ده.

ــہ

"د خپل عشق په پاکبازئ شکر ګذار یم
چه مے نه شو ککړ په خټه د عصیان ډوب"

او دا هغهٔ د الله تعالیٰ ډیر لوئے فضل او کرم کړی چه د هغهٔ مجازی مینه د ګناهونو نه پاکه او صفا پاتے شوه ځکه چې په دے لار کښے د ښو ښو ځوانانو پښے خوئیدلے او د ګناه ډورے کندے ته ورګزار شوی دی۔

ــہ

"که څښتن ئے په خپل فضل کومک نهٔ کا
ښے ښے به پرے به شی سپکے لکه ډډ ب"

د حمید بابا حقیقت څخه د هغهٔ عشق د ژوند اخیرنئ برخے سره تعلق او پیوستون لری ولے د "دیر آید درست آید" وینا مطابق هغه د ژوند عُمر د هغهٔ حقیقی مینه هم د خدائے پاک یوه ډیره لویه مهربانی او عطیه کړی

ــہ

"په پیری کښے عاشقی د خدائے عطا ده
کړه څوک په سپینه ږیره زلے کیږی"

او بیا د حق څخه د هغهٔ مینه دومره بے انتها او بے اندازے وه چه شپه او ورځ د الله په عبادت سر په سجده پروت وی او بے له حقیقی استائے بل هیڅ څهٔ سره زړهٔ نهٔ وی

ــہ

"کوم یو بُت دے ناست په زړهٔ کښے دے حمیده
چه مُدام په پرستش ورته نسکور ئے"

"نور عالم که په کیمیا زر کوی خاوره
ما زر خاوره کړل د مینې په کیمیا کښې"

او دا هم د دې رښتینې مینې برکت وی چه د سر سترګې ئې بینا شی
د خاورو نه رو غه ختنه ئې روښانه او لکه د سرو زرو د اهمیت ډېره
شی او د هر چا د سترګو تور شی

"چه قدم مې د آشنا په کوڅه کیښو د
د سر سترګې مې بینا شوې په دې تلو کښې"

"چه مې بیا مونده د عشق کیمیا ګری
څکه شوه خاکی بشره نه ما زری"

"چه مې مات د ډر په خیر د تن صدف کړه
هله پور ته شوم له خاورو لاس په لاس شوم"

نو د عشق دې مقام ته هغه څوک رسیدې شی څوک چه د
دنیا مال و دولت، حرص و لالچ او نفس پرستئ نه خپل ځان وژغوري
او یو خواته کړی او د حقیقی محبوب په لار کښې خپل ځان او مال دا و
کړی هغه څوک چه د دُنیا په مال او دولت مشین وی او دین هم
غواړی نو دا سې خلق د حمید بابا په نزد په غلط دی او د خیرې
بیوقوف دی.

"د دُنیا مشین چه دین غواړی پوچ وائی
بې هوده غلبیلوی سره تش بوس"

"په دُنیا مئین له خیرے بیو قوف دی
لکه ورړوکی دَ سَرۀ اورته کړی هوَس"
"پرورش دنفس پکار نۀ دے حمیده!
له دښمنه سره څوک نۀ کا تولا"

اوُ هو کله چه دنفس اوُ هوَس د جنجال نه آزاد شی نو بیا پکار دی چه په سرکښے دعقل په ځائے دحقیقی مینے یوُ زبردسته لیونئ جذبه اولری اوُ حقیقت حاصلو دپاره په هیڅ آرام اوُ ایسارنۀ شی ځکه چه هم دغه لیونتوب دحقیقی محبوب خپلو لویوُ ذریعه ده.

ہ

"دَ لدادَه لره دعشق په طریقت کښے
لیونتوب دے واقعی پیر دستگیر"
اوُ نۀ یوازے د مینے لیونتوب بلکه دحق لارے سِنود تے له دچا پیر فقیر لاس نیوے هم ضروری گنړی.   ہ •

"عاشقی په خود رایئی سره نۀ شی
پهٔ لار کښے دم قدم بے رهبر نۀ غوره"
"دینداری په خود رایئی سره نۀ شی
په دا کار کښے بے مُرشده بے پیر مۀ شۀ"

حمید بابا اگر چه لکه د رحمان بابا صوفی شاعر نۀ دے اوُ نۀ ورته مونږ صوفی شاعر ویلے شو ولے دومره نه هیڅکله انکار کیدے نۀ شی چه د حمید بابا په کلام کښے تصوّف ډیر زیات دے د تصوّف

نظریه پهلو نه تخکښې اسلام نه حضرت محی الدین ابن عربی رانښاسلو اؤ دهغه راسې را په اېسته دا نظریه په اسلام کښې ښه مضبوطه اؤ جرړے نیولے دا روانه دہ اؤ په هر دور اؤ هر وخت کښې د دے پلوکار موجود دی۔ د پښتو ادب په زړو شاعرانو کښې د رحمان بابا نه وړاندے مرزا خان انصاری چه د پیر روښان مرید وو د دے مکتب یو نامتو غړے وو۔ د دۀ نه پس د پښتو ادب کنړو شاعرانو د دے مکتبۀ فکر نه خپل تعلق اؤ علاقه اوګڼهله۔ خو چه نوبت رحمان بابا ته راورسید نو هغۀ د تصوف دا مکتبۀ فکر ښۀ اؤ ځلولو اؤ هغۀ تهولے کمۍ ئے پوره کړے کوم چه په دے لړ کښې پښتو ادب لرلے اؤ ځانله ئے هغه مقام پیدا کړو چه نۀ د دۀ نه مخکښې اؤ نۀ بیا وروستو چا نصیب شو دۀ نه پس د یرو شاعرانو په دے میدان کښې د خپل فکر نیلی او ز غلول اؤ ز غلوی ئے۔ خو څوک هم د رحمان بابا د غه لوړ اؤ هسک مقام ته ؤ نۀ رسید و۔ په دے کنړو شاعرانو کښې د حمید بابا نوم هم راځی چه د تصوف په حقله ئے ډیر ښکلی اؤ نبا ښته اشعار پرینبودی دی۔ دا یو څو شعرونه ئے د نمونے په توګه ذکر کوو۔

ه

"ستا په سترګو د غفلت پردے پرتے دی
کنړه یار په مخ نیولے پلو نۀ دے ه

"کاش! که لرے کاندے یار حجاب له مخه
زۀ په دوک یم پرېږدہ درست جهان په دوک شی"

"نه ئې مثل په جهان کښې نه مثال شته
نه ئې څوک په کاروبار کښې سموسیال شته"

"تورې زلفې سپینې رخسار د نګار وینم
د جهان په هر سفید په هر سیاه کښې"

"د هغه حسن بیان په کوم ژبان کړم
چې یوسف غوندې خوبروئې ډیر بیاری کړي"

"د غنچې په څیرې زیست په ځیګر خون دې
که هر څو ئې لکه ګل له ما بیکتا"

"د غفلت په کوټکر وې زړه سوزی
چې همه له ننده مرې دردو په غاړه"

"له حجابه د جمال هسې جلوه کا
لکه سره لمبه په خړي له تنوره"

"چې په هر درو دیوار د پرتو لګی
هغه هسې رنګ آفتاب مبین، نه ئې"

"د احد لوئی به څوک څه کا حمیده!
چې ئې حد نهایت نه رسي تر بریده"

د حمید بابا د تصوف دا څو شعرونه تاسو ولوستل ادس را
چې د سوال وزارۍ هغه دعائې هم وګورو کومه چې هغه په ډیر
خاکسارۍ او عاجزۍ څخه د الله پاک نه غوښتې وه .

ه

قناعت را ته عطا کړے زما ربه!
ورک زما حرص و هوا کړے زما ربه!

دا سرکشی نفس ے سرکوزے کړے په صبر
را ته اِیله دا بلا کړے زما ربه!

چه دِ نوم په غوږ د واؤرم سره لمبه شم
هسے سوز دا کښے پیدا کړے زما ربه!

چه ے نهٔ شی اضطراب دچا په ظلم
هومره صبر سکون را کړے زما ربه!

په زغملو ے دید و پښیمان مهٔ کړے
دغه زهرے دوا کړے زما ربه!

غوره نفس لرے ویستم له خاکسارئ
ما په خپل وطن بسیا کړے زما ربه!

نورے ؤ ساتے زبان له پوچ گویئ
په خپل وصف ے گویا کړے زما ربه!

که رضا دِ ستا په سرا ؤ په مال مومم
زړے ساره دا سودا کړے زما ربه!

دَم قدم زما محکم لرے په شرعه
له لغزشه ے بچا کړے زما ربه!

چه د نفس له دلا را مه خوا په خواوی
له هغو ے شا په شا کړے زما ربه!

هر چه ستا، ستا د رسول ؐ پکښې مرضي وي
هغه کار شغل زما کړے زما ربّه!

چه حضرت ؐ راوړے دين دے زما دين دے
که مے مړ په دا وینا کړے زما ربّه!

هر قدم په نالیدلے لاره بې دمه
خپل کرم مے رهنما کړے زما ربّه!

د رسول ؐ په پاک وجود دِ ستا سوګند وی
په قبوله دا دُعا کړے زما ربّه!

که حمید خطا دعا کړی په غفلت کښے
دا خطا دعا رَسا کړے زما ربّه!»

د حمید بابا دیوان دد ے او دا سے نورو ډیرو اشعارو نه موږ پټ پروت دے او که څوک ورته په لږ ژور نظر وګوری نو د کلام زیاته حصه به ئے د حقیقت څخه تړلے ووینی لکه چه په خپله په دعوے ځکه وائی۔

سه

"د حمید د مینے کوټ په کره او ځی
که پرے ټیر شی قدردان دانا صراف"

---



دَ حمید بابا په مزار دمشاعرے یو منظر ۳ر دسمبر کال ۱۹۷۲ء

# د مومند و دوه شاعران

# عبدالرحمان بابا

# اؤ

# عبدالحمید بابا

رحمان بابا اؤ حمید بابا دواړه دیوے زمانے یؤ ځکے یؤ ذات، یؤ قوم اؤ دیوے رنګکۍ ګلونه دی. دواړه د بارے په اوبو لوئے شویدی اؤ د دواړو د شاعرۍ موضوع "عشق" دے. خو د رحمان بابا عشق "زیات د حقیقت په رنګ کښے رنګین شوے دے اؤ د حمید بابا د "عشق" زیاته برخه مجازی ده. ساز یؤ دے خو نغمه ترے دوړیؤ په بیله بیله طریقه راؤکاږی. یؤ خپل منزل ته مقصود ته رسیدلے دے اؤ بل د ورسیدو کوشش کوی. د دواړو د کلام ښه کافی برخه "اخلاقیات" ده. دواړه یو درس لری

چه "انسان شه اؤ مسلمان شه" دغه وجه ده چه په یؤ موضوع باندے د بحث له کبله د دواړو آواز یؤ شانکاری اؤ کله ناکله د یؤ په کلام د بل د کلام گمان کیږی.

دواړه د باړے په خړو اؤبو لوئے شوی فصل باندے لوئے شوی دی اؤ د هغه سرے اوچے ککړے نه ځکے پیدا وار دی چه خنګه به ئے باران د باړه هرونت آسمان ته بکه نیولے وُ ه. رحمان بابا د باړے اؤ حمید بابا د خوړ په کمروناست د اؤبو په شړهار کښے د زړه سوے نغمے اؤ کښلے دی- اؤ دغه د دواړو شاعرانو هم د ښیرا ګه نه راؤړی اؤ په یؤ دریاب ورکله یږی خو صرف لارے ئے بیلے بیلے اختیار کړیدی د دواړو شاعرانو آب وهوا، ذبه اؤ تأثرات یؤ رنګ لری.

دواړه ښه ټینګ پښتانه دی اؤ هر چا کښے اوچت پښتنی کردار پیدا کول غواړی.

رحمان بابا د پیښور نه په سویل د ړه لرے درے میله د کوهاټ سړک په بره اړخ په بهادر کلی کښے پیدا شوے اؤ لوئے شوے دے اؤ حمید بابا د پیښور ښار نه تقریبا اووه میله لرے هم د کوهاټ سړک په بره اړخ ماشوګګر نوم کلی کښے زیږیدلے دے اؤ د ژوندانه ورځے شپے ئے هم د غلته آړولے دی.

د دواړو کلو ترمنځه تقریبًا څلور میله فاصله ده. دواړه کلی نیږلو کښے غټ ثقافتی تړون لری د دواړو د خلقو خیالات، رجحانات اؤ احساسات یؤ دی د دواړو شاعرانو د خلقو د ژوند ترجمانی اؤ عکاسی

په یوه دل کښې ئې فرق هیڅ نشته. سندره یوه ده خو په آواز کښې د دواړو ترمینځه لږکوټی امتیاز دے کوم چه د ژبیات مشابهت په مقابله کښې تت ښکاری. د ځینو لیکوالو خیال دے چه سره ددے چه رحمان بابا او حمید بابا دواړه هم عصر دی او د یو علاقے سره تعلق لری ولے بیا هم دواړه د یو بل نه بے خبره دی او د یو بل متعلق ئے هیڅ ویلی نه دی. خو ځما دا ئے دروند والے نه لری ځکه چه د حمید بابا او د رحمان بابا د کلام ترمینځه ژبنت ترون لیدے شی. رحمان بابا د حمید بابا نه په عمر کښې مشر وو، خو ځکه نه دواړه د یو بهار دی د رحمان بابا کلام یو داسے اسرافیلی شپیلئ ده چه په یو نړک ئے ټوله پښتو نخواه کښې آواز واؤریدے شو. مرسپین زړونه ئے بیا راژوندی کړل او د دردمندو زړونو ملهم شو. نو او س دا ځنګه ممکنه ده چه حمید بابا به د هغوی د کلام نه متأثره شوے نه وی د یو لیکونکی دا رائے چه حمید بابا د رحمان بابا سره لید لیدل کتل کړی وو هغوی به شاتړپولے ده او دعا ئے ورته کړے ده، تر ډیره حده صحیح ښکاری. ځکه چه کله چرے حمید بابا د رحمان بابا د کلام نه بے خبره وے نو د هغه په کلام کښې به ځینې داسے اشعار ولے راتلل کوم چه د رحمان بابا په کلام کښې هم موجود دی. لکه د دواړو شاعرانو د غزلونو په یوه دل دا مطلع ګورئ دواړه وائی

"چه نظر کړم د خوبانو د رخسار ته
آئینے غوندے حیران شم د دے کار ته"

د نغمې په څېر شعرونو، بحرونو، اوزانو، مصرعو، ردیفونو او قافیو د هم آهنګۍ نه علاوه دواړو د ګل خان او جمال خان په واقعه اوږده اوږده نظمونه لیکلي دي. داسې ښکاري چې حمید بابا د رحمان بابا د نظم په رد کښې ویلي وي. ځکه چې یو دې واقع ته جائز او بل ناروا وائي.

د عبدالحمید بابا د شاعرۍ یو غټ کمال دا دے چې هغه په هر یو شعر کښې نوي نوي تشبیهات، کنائے او استعارے راولي. د رحمان بابا د "مرګ" په ردیف حمید بابا هم یو غزل لیکلے دے. داسے معلومیږي چې هم د دغه غزل څېنې الفاظ لکه فردوس ګلونه، سیمه وغیره په نوے جامه کښې پیش کړے شوي دي.

رحمان بابا که یو رهنما، لارښود او اخلاقي شاعر دے چې د عشق په رڼړا کښې خلقو ته سمه او نیغه لار ښئي نو بل پلو حمید بابا د حسن په ښکلے رڼړے شمع ځان لکه د پتنګ ور غورځوي او ځان سوزوي که رحمان بابا په ساده او خوږه ژبه ښه نصیحت کوونکے دے نو حمید بابا د نازک خیالۍ او مضمون آفرینۍ استاذ دے. که د رحمان بابا د شاعرۍ مرکز عشق پرستي ده. نو د حمید بابا د کلام محور حسن پرستي ده. که د رحمان بابا شاعري د حقیقت نه ګېر چاپېره چورلي او د حسن په شا د الله پاک تجلي او نور ویني نو د حمید بابا شاعري هم د "حسن" نه تاو را تاو ده. که رحمان بابا د عشق و محبت نه متاثره دے نو حمید بابا د عشق و محبت غمونو او سوز و ګداز پریشانه او سرګردانه

کړې دې. که رحمان بابا د عشق تعریف او ستاینه کوي نو حمید بابا
د عشق سرو لمبو او غمونو نه سرټکوي.

الغرض رحمان بابا او حمید بابا دواړه عاشقان دي خو د یو
په عشق کښې جذب دے او د بل ارمان او آرزو ښه مضبوطه او ټینګه ده
که یو په دغه عشق کښې خوشحالي محسوسوي نو بل دپاره دا د درد
او تکلیف خبره ده. د دواړو شاعرانو ذهني او فکري حال، معنوي او
اخلاقي مقام، شخصیت او کردار په دې څو شعرونو کښې اولټوئ.

رحمان بابا وائي. ؎

"دا جهان دے خدائے د عشقه پیدا کړے
د جمله و مخلوقاتو پلار دے دا"

"که آسمان ته لاس د عقل نه رسیږي
دا خو عشق دے چه په عرش کرسي قدم ږدي"

"مرتبه که د عشق شي ور څرګنده
ملائک به واړه وائي چه آدم دے"

"عشق عاشق لره یو هسې پیر استاد دے
چه به نه وي بل دا هسې پیر استاد"

"که اعلیٰ مرتبه غواړې عاشقي ده
نور هم واړه ادنیٰ دي ادنیٰ مه شه"

"د رحمان په عاشقۍ کښې سترګې وشوې
څوک چه وائي عاشق پوند دے هغه خوار شه"

او حمید بابا د خپل عشق و محبت بیان داسې کوي.

"کامیابي په عشق کښې نشته زړه څول دی
هر نفس په تشه تشه تمنا"

"عاشقي به ئې اخیر تر بادړې سپک کړي
که وي د ډوند ترکوه قانه تول د چا"

"چه د عشق په غم آباد یم دیره شوې
نور ئې هیڅ که نیادي د وجود نشته"

"عشق د بوري د بدنامه کار راوکړو
لاس په خلله ایښې ژړا کړم شب و روز"

"هسې زړه د ځان په غوښو عشق آخته کړم
لکه نه خیژي له ځانه د چمن لاس"

"د حمید زندګاني د یار په غم ده
نا قصان به ئې ژوندې بولي په ساه"

د دنیا د شاعرۍ تواریخ که را واخلو نو دا به ثابته شي چه تر اوسه داسې یو شاعر هم تیر شوی نه دی چا چه د عشق په موضوع تبه ناڅه ویلي نه وي. عشق او شاعر سره خپلو کښې ډیر تعلق لري او هسې هم د انسان فطرت مینې محبت طرف ته ډیر رجحان لري. هر څوک چه کوري نو د عشق په درد به دردیدلې او د غم لړلې به ښکاري د رحمان بابا او حمید بابا دواړو دا خیال دی چه عشق او د عشق نمونه

انسان سره د ازل نه راغلی دی او بې له دې انسان هډو انسان کېدے نه شی

رحمان بابا وائی ؎

"خاورې د آدم چه کړې خمیر فرښتګانو
درست ئې په غمونو او دردونو ولاړه"

او عبد الحمید بابا وائی ؎

"چه مې نښتې فرښتو په لاس آخلے
له هاله ئې بوئ د عشق تللو له طینته"

د مادی دنیا په ژوند کښې انسان د پاره ډیر مصیبتونه پراته دی. خو دا ئې داسې نه دی چه ګنې انسان به خپله اوږه ور آړمه نه کړې شی ولې دې سره سره یو بل غم د عشق دے په کوم چه کامیابی موندل انسانی فطرت نه بهر خبره ده. څوک چه په دې جال کښې یو ځل ګیوړی. نو هغه تړے د مرګ ترڅو ئې ځان بهر نکړې شی.

رحمان بابا او عبد الحمید بابا دواړه عشق ته د اور سره تشبیه ورکوی.

رحمان وائی ؎

"عاشقی ده خندا ئې له اوره پیدا کړې
چه په اور کښې ئې وطن وی څه به خوب کا"

حمید بابا وائی ؎

---

نښتې: د عاشق چه لا آخلے ملائکو: خو ئې لکه بوس هسې ور ګډ کړه په خمیر کښې "علیخان"

"هیڅ ئې نۀ نزده محبت کۀ اور دے دا

په اور سوزم په رضا کۀ زور دے دا"

او څوک په يو ځل په رشتينامستين شي نو هغه بس بيا نۀ په

ځان وي او نۀ په جهان. په مينه کښې داسې ليونے وي چه د يار

سر کښې سرور کول خو هغه د يار ه ډير اّدني څيز وي. لکه چه رحمان

بابا وائي

"کۀ د سر شندل د شوار په ما وتا دي

دا په عشق کښې سهل کار دے دشوار نۀ دے"

او عبد الحميد بابا وائي

"ليونی غوندے د عشق په کاروبار کښې

د خپل ځان په سود و زيان نۀ يم هرګز"

حقه خبره خو داده چه څوک د عشق په کاروبار کښې يو ځل آخته

شي نو بيا پکښې داسې ورډوبنت شي چه نورو کارونو ته ئے هم وپام نۀ

وي او د غيے له ډير د غنونو خلاصے بيا مومي چه دے حقله بالترتيب

د رحمان بابا او حميد بابا د اشعر و نه وګورئ.

"ستا په ياد وکښې رحمان هسې مشغول دے

چه په زړه کښې ئے نور هيڅ غم و خيال نشته"

"چه ئے زړه له بله غمه په آمان کړم

د عشق غم دے کۀ زما غم خور دے دا"

او د غه دواړه بالترتیب یو بل ته ځای د اشنا سپین ښکلی مخ
او تور خط ته د کتاب سپینو پاڼو او تورو لیک سره تشبیه
ورکوي او وائي، چه هر کله د اشنا کتابي مخ ځان ته وي نو د نورو
قسم کتابونو لوستو ته هیڅ وخت حاجت نه وي او هم د دغه یو
کتاب بیا بیا لوستل خوند او مزه کوي.

ــه

"خط دِ تور حرفونه مخ دِ پاڼې د کتاب دی
شغل د کتاب دِ بل کتاب را څخه یوړو"
"چه مشغول د استا د مخ په خال و خط شوم
مشغول لا سر له څخه پاتې د کتاب شوم"

او د اشنا د مخ ستاینه ئې ځنګه کوي د دواړه د خپلې خپلې معشوقې
د ښائسته سترګو د مړاو کتلو او غړلو تعریف د دې نه هم
په ښه ډول کوي. رحمان بابا وائي

ــه

"خو دَیار بیمارې سترګې خدای ئې خوني کړې
ګنړه خون کله کولې شي بیمار،"

او حمید بابا وائي ــه

"بې دَیار له مړاو سترګو په کښې ګوري
ګنړه نه کا رنځور ریښتیا نه جواب سخت"

خو د مړاو کتونکو سترګو مینې بیا په داسې غم غمژن وي چه

دَ خان په کته اؤ تاوان هيڅ نهٔ پوهيږی اؤ د مجنون غوندے سرګړوے بر دَ ځلے په ميرو سرو وی. بد حال اؤ پريشانه په کندو کپړ و اَو تر اَو ترکرځی اؤ معاشرتی ماحول سره هيڅ سرو کار نهٔ لری داسے حالات زمونږ په دے دواړو شاعرانو هم تيرشويدی لکه چه رحمان بابا وائی ہے

"د مجنون صورت په نړه کړه رحمان کوره
ستا په عشق کښے هسے خوار و زار دے دا"

اؤ عبدالحميد بابا وائی ہے

"چه ے وُليد و حميد د عشق په کار کښے
ليونے دَ مجنون کشر ورور دے[1] دا"

دداسے عاشق اؤ مجنون غونه که په خته سپک کيدے شی نو هغه ژړا فرياد دے. خوله بده قسمته د عاشق غريب ژړا هم بے اثره وی اؤ معشوقے ژړا پورے هم توقے مسخرے کوی داخيال رحمان بابا په دے شعر کښے داسے ځايوی. ہے

"نهٔ دا ستا په غم کښے شمع غوندے ژاړم
نهٔ زما په غم کښے صبح غوندے خاندے"

اؤ عبدالحميد بابا وائی ہے

"نهٔ د شمع غوندے اور په تندی بل کړم    نهٔ د صبح په خير خاندے لم هم ورته[2]"

---

[1] چه روز کار د مجنز والله موَمند ليں ٹه شی    کشر ورور دے د مجنون که مجنون نه دے" (رحمز والله خان)

[2] نهٔ د شمع په خير ژاړم تو صيا حم نهٔ د صبح په شان خاندے لم هم ورته" (رشمی الدين کاکړ)

او هم دغه د اشنا بیوفائی او لاپرواﺋی ؤه چه د رحمان بابا او عبدالحمید بابا زړونه ئے د دنیا نه توړ کړل او دواړو بالترتیب دد ے خلاف آوازونه اوچت کړو۔ سه

"د وفا د ګلو پانړے پکښے نشته
کاشکے مه وے دد ے دهر په ګلزار کښ"
"رنګ او بوئے د وفا نشته پکښے ځکه
دد ے باغ له ګلو واخست خپل نظر ما"

او هرکله چه دوا ره د مجازی مینے نه مایوسه شی نو بیا حقیقی مینے ته د اسے یو محبوب شی چه په هرڅیز کښے ورته حقیقتی محبوب ښکاری.

په دے مقله د رحمان بابا دا یو شعر وګورئ سه

"هرخوا چه ددوهم زه رحمان د زړه په سیل
بل مطلب ے نشته طلبګار یم ستا د مخ"

او عبدالحمید هم په دے ردیف دغه خیال داسے بیا نوی .

سه

" د حمید بوالهوسی ناکسی نه ده
لټوی په خپله ورکه پسے هر مخ"

په دے لړکښے بالترتیب د رحمان بابا او حمید بابا دا شعرونه هم وګورئ.

سه

"هر زیارت لره چه ځمه مراد ے ته ئے
زه زائر د ګنبخانے د حرم نه یم"

"که کعبے که بتخانے ته تګ د پوئ کړم
نه مايل د يار له مخه مقصود نشته"[1]

د مينے محبت د سوځو نغمو نه علاوه د دواړو شاعرانو د کلام زيات برخه په اخلاقی درس هم بنا ده. دواړه هر هغه وخت فضول او بے فائده ګڼړی کوم چه د خدائے تعه په عبادت کښے نه تيريږی. لکه چه رحمان بابا وائی

"واړه نه هر قاتل نغړے که پوهيږے
نه چه بے له خدا يه نغړے هر انفاس"

په دے حقله حميد بابا هم د رحمان بابا سره په يو آواز ښکاری

"هر نفسی چه بے د خدائے له يادو نغړے
ګويا نغړے سرے سرو تيکے په حساب"

د رحمان بابا او حميد بابا دينه هرګز دا مطلب نه دے چه ګنی سړے دِ تارک الدنيا شی. کار دِ هيڅ نه کوی او په يوه کوټه کښے دِ پلنتی ويو هی. داسے خلقو ته دوئ دواړه د نفرت او کرکے په نظر ګوری او داسے کارونه د اسلام د تعليم خلاف ګڼړی. د پورتنو شعرونو نه د دواړو غرض دا دے چه مادی دُنيا کښے دِ څوک دومره ځان نه بوختوی چه د هغے په وجه ئے روحانی دُنيا بالکل هيره شی

---

[1] که کعبے که بتخانے لره ور درومم هم ے ته ئے په دا د داړه کښے مطلوب "
(رحمن والله خان)

دی دُنیا سره زړه تړل اَو د رُوحانی ژوند فکریو نه دے ته غور کول
دواړو په نزد بیوقوفی ده لکه چه رحمان بابا وائی ـــ

"رحمان هسے بیوقوف سوداګر نه دے
چه د دین متاع بدله په دینار کا"

اَو حمید بابا وائی ـــ

"نادانان دین ورکوی دُنیا پرے اَخلی
دانا نه کړی دا دادن، دا ګرفتن"

رحمان اَو عبدالحمید بابا دواړه د داسے خلقو هم ګرکه کوی
یا چه ظاهری لباس خو ئے د لویو لویو عالمانو وی. ولے پټ په پټه
زړه کښے ساده مسلمانانو ته د دوکے اَو لوټلو جال جوړ کړے وی. داسے
ئے کار خلق د مُلا صوفی اَو شیخ په جامه وی. خو درحقیقت د ملنګ په
لباس پټنګ وی اَو د دنیا مدعا سرکولو په غرض د دونږ خیاله، د مذهبی
خلقو اَو لاتقو عالمانو په لار کښے لوټے ختنه وی اَو د علم عمل اَو حرکت
نخه نیلده وی او کوری رحمان بابا د دے قسم خلقو ته په څه شکل
ترګنده وی. ـــ

"دین ئے دام وی د دُنیا په لار کښے ایښے
پرے راګیروی وحشیان د مخلوقات"[۱]

اَو حمید بابا هم د داسے خلقو په مخ حیا نه پریږدی اَو په

---

۱ـ واعظان که این جلوه بر محراب و منبر میکنند — چون به خلوت می روند آن کار دیگر میکنند
(حافظ شیرازی)

ـه

بابا وائي

"ساده زړونه کمند دي د نيولو
چه په لاس تورے تيږے کا دَ اسنوس"

رحمان بابا او حميد بابا دواړه دالله تعالیٰ نه دنا اُميده کيدو سخت خلاف دي۔ رحمان بابا وائي ـه

"هره ګړه کښ لرې نيک بخته
نا اُميد له خدايه غوته جبين مه شه"

او عبدالحميد بابا دا يو شعر د دے خيال تائيد دا سے کوي ـه

"له مقصوده نا اُميد مه شه يک لخته
خدائے په نه مکه کړي مرغونه د هوا پښے"

دواړه شاعران په دے خبره متفق دي چه هر مجلس خپل خپل تاثير لري۔ که يو سړے د ښو خلقو په مجلس کښے کښيني نو په هغه کښے به هم د ښو خلقو خوئي بوئي پيدا شي او که چرے د بد کردارو خلقو په مجلس کښے کښيني نو دے به هم لکه د هغوئي بد کرداره شي۔ په دے لړ کښے رحمان بابا د يو غزل دا درے شعرونه وګوريئ ـه

"د بيدردو همدمي به دِ بيدرد کا
د نامردو همدمي به دِ نامرد کا
هر کاله چه ټوک په نمکه باندے کيږدي
هغه نمکه ئے دَ جنسه د خپل ګرد کا
په مجلس د ويرژړلو ټوک ورمه شه — که صحيح او سلامت وي آه و سرد کا"

رحمان بابا د غزل دے دی یو شعر ونو ته د عبدالحمید بابا د یو غزل دا درے شعرونه تر دیره حده سمون خوری.

ـــ

" په یوه ساعت مجلس د ناکسانو
افلاطون ترخیلے و باسی ماخولیا
هغه رنگ آخلی جامه چه په خُم کیوزی
سور که سپین، که زیړ، که شین دے که سیا
شپون ، غوبه څکه سنکر له خلق بولی
چه روز کار کا ندے له کانړو د بیدیا"

لکه چه ظاهره ده هر شاعر د خپل ماحول ترجمان وی او هغه هر هغه ته وائی څه چه د هغه وخت د هغه ماحول کښے موجود وی. رحمان بابا او عبدالحمید بابا دیو داسے دور سره تعلق لری چه د مغلو زور زیاتے انتهاته رسید لے وو او له دے کبله د ملک په څیښکو تهونو کښے د حکومت برخلاف خلق راپاسید لی وو او هر چا د خپلے آزادئ دپاره لاس پښے خوزولے او اورنګ زیب بادشاه ته پریشانئ کښے غورزولے وو. خو په نرمئ سره د سمون راوستو په ځائے هغه د زور ظلم نه کار واخستو او بیا په تیره تیره تیرو کړے ظلم زور شکار هغه پښتانه کړل چا چه د خپل پښتون بادشاه ابراهیم لودهی نه تخت اخستے وو او اولنی مغل بادشاه بابر ته ئے حواله کړے وو. خو د مغلی حاکم تولو د یم په پښتنو د زور زیاتئ نتیجه داشوه چه دوئ هم لکه د نورو صوبو

په شان خپله علاقه کښې بغاوتونه شروع کړل او مغلو ته ئې آرام نه نه پرېښودل. په پښتني ادبي حلقه کښې مغلولواله د ظلم ناروا دپاره يو خاص اصطلاح وګرځېده کومه چه تر ننه د پښتو ادب شاعران په دغه معنی کښې استعمالوی.

د رحمان بابا او عبدالحميد بابا ميدان سياست نه وو او نه ئې موقعه ورته په کوتو نه ورتله چه لکه د خوشحال خټک ئې عملی طور د مغل او پښتنو په جنګ کښې حصه اخستې وه. ولې په خپل خپل کلام کښې ئې ځائې په ځائې شعوری طور سره ځان د غه تحريک سره تړلې دې او مغلو ته ئې د هغوئ د ظلمونو په وجه د ويزارئ اظهار کړيدې رحمان بابا او عبدالحميد بابا دواړه په پېښور کښې د دغه وخت د حالاتو عکاسی په دې ډول کوی.

رحمان بابا وائی

"په سبب د ظالمانو حاکمانو
ګوراو اور او پېښور درې واړه يو دی"

او حميد بابا وائی

"غريب خلق مردګان پکښې وړ تيږی
ظالمان شکيو منکر پېښور ګور شو"

د رحمان بابا او حميد بابا تر مينځه د دې ورکوتې شان موازنې نه پس د يادونې وړه يوه خبره ضروری ده چه وشی او هغه دا چه د دې موازنې نه قطعی دا مراد اخستل نه دی

په کار چه کوندے رحمان بابا په عبدالحمید بابا یا عبدالحمید بابا په رحمان بابا او ډیر کنړے شوے دے. حقیقت نه هیڅوک سترګے نه شی پټولے او دوی دواړه په خپل خپل میدان کښے ډیر او ډیر شاعران تیر شوی دی او دواړه خپل خپل ځانله بیل بیل سبک یعنی مکتبهٔ فکر (SCHOOL OF THOUGHT) لری او دواړو ته خلق یو رنګ دقدر په نظر ګوری. دلته د دواړو شاعرانو په مقابله د ځینو هغه زړو شاعرانو خیال لنډ وکوړئ چا چه هم په یو موقعه په خپل کلام کښے د دواړو شاعرانو په مقابله خپله خپله نظریه پیش کړیده په دے لړ کښے د ټولو نه وړومبے د عبدالعظیم رانړزی دے شعرونو ته لنډ ځیر شئ هغه لیکی ـ

"خدایه وُ بخښے مومند عبدالرحمن
پرے نازل کړے خپل رحمت لکه باران
ته شناسته کتاب ئے کړے عجیبه دے
د استعارو په پښتو ژبه عیان
چه نظر ئے کړے هر بیت او هر غزل ته
ته به وائے چه یا دُر دی یا مرجان.
ټول کتاب ئے ګلید لے په توحید دے
مینه دار پرے ځکه ډیر دی عارفان
څوک به نه وے دکتاب هرګز وُنه کړه
که رانیول د زمانے شی شاعران

په ګل وعظ ونصیحت پند و عبرت دے
شب و روز ئے ګمګوری طالبان
رحمت بیا په ماشوال عبدالحمید شم
په جوړ کړے د ه کتاب دے نبۀ روښیان
بحث د عشق دد ے کتاب دے په هر بیت کښے
دیاران په دود پر ے ژاړی عاشقان»

او پیر محمد کاکړ یو نظم کښے دادوار ه شاعران په دے شان ستائی

«که هر څو وائی نازک شاعران شعر
و ے د و ئی کنړی معجز د رحمان شعر
سوز ګداز د محبت ئے مکر زیات دے
په سوزان ئے هیبه شان کړو بیان شعر
جو ړ په شعر کښے رحمان غیب اللسان دے
په دا خیر نشته هرګز داستان شعر
نو مصرعے ئے ښاد شه لړ د ملغلرو
په نظم تار ئے او بختہ کړ و یکسان شعر
پس له دوئی موشګاف عبدالحمید دے
په ئے د و ے نبۀ نازک نکته دان شعر»

او شمس الدین کاکړ د پښتنو شاعرانو په حقله د خپل یو نظم
ابتداء په دے ډول کوی۔

"که څوک وئیسی په لاس میزان د شعر
په عروض که سنجیده بیان د شعر
ډیر نه رسی په شعر له رحمانه
که هر څو کوی هوس افغان د شعر
په تحقیق سره رسنیا غیب اللسان دے
لیاقت ئے د ډیر لوړه نشان د شعر
پس له دهٔ نور موشگاف عبدالحمید دے
باریکی ئے د کلام دده نشان د شعر
درست دیوان ئے له نو خطو گفتگوئے کا
هم ئے واخست له نو خطو شان د شعر"

او عبد الله پوپلزے په خپل یو نظم کښے دوے دواړه شاعرانو په حقله داسے وائی

"د حمید موشگاف شعر نه هوس کا
گوندے شے ددهٔ په جناب تیز نظره
د رحمان له شعره بوئی د معجزے ځی
مګر یں زرکاندے له پیره برابره"

او دد وئی دواړو په حقله مرزا حنان خپله رائے داسے ښکاره کړے وی.

"بل رحمان سرہ بندے د پښتو ر دے
په پښتو ئے غزل په دے یو ترټل

بل حمید موشګاف د خیال په شعر
څخه به وایم ناسفته دُرے پیئل»

اؤ مصری خان ګګیانړے د دے دوارو په حقله داسے وائی سه

«شعر د فارسئ وینم شیرین لکه شکره
شعر د پښتو کړو تر فارسئ حمید، رحمان لذیذ»

دا خو یؤ څو داسے مثالونه وو چه یؤ شاعر په خپل یؤ مسلسل نظم یا د غزل په یؤ شعر کښے هم په یو موقعه د دوئ دوارو ستائنه کړے ده. ګنړه هسے خو د دے دوارو په حقله ډیرو شاعرانو ډیر څۀ ځائے په ځائے ویئلی دی اؤ د پښتو اَدب تقریبًا ټولو شاعرانو دوئ ته د دوئ د وُچتے اُولوړے شاعرئ په وجه د خپل عقیدت ګلُونه پیش کړی دی. خو اصلی خبره دا ده چه د نورو په نظر کښے د لوړتیا نه علاوه رحمان بابا اؤ عبدالحمید بابا په خپله هم په خپل ژوند کښے د خپل کلام مقام پیژندلے وو . لکه چه دواړه بالترتیب وائی -

سه

«هم نغمے کاندے هم رقص کا هم خاندی
د رحمان په شعر ترکے د باګرام»

«د باګرام د لاله زار بلبلان وا وره
د حمید خوش ګویائی کړلۀ خاموشه»

---

# دَعلی خان په شاعرئ

# دَعبدالحمید بابا اثر

دعلیخان دڅوند. قام قبیلې اوُ ځائ ټیکی په حقله دیکوا لو ترمنیځه دوه نظریئ دی. دیو ے ډلے خیال دے چه داهم هغه علیخان دے خوک چه دمحمد اَفضل خان خټک ځوئ، دا شرف خان هجری نوَسے دَ خوشحال خان خټک کړوَسے اوُ دکاظم خان شیدا ورور دے اوَ چاچه دَ پلار دمړګ نه پس خپل یو ورور سعد الله خان ځخه دقام په مشرئ دخټک جګړے نه پس آکوړے پریښو دو اوُ بے ځښیې بے پتے هشتنغر کښے میشته شو.

خو دبلے ډلے دا رائے ده چه علیخان دهشتنغر اَصلی اوسیدونکے وه دغلته پیدا شوے وو اوُ دلته و ند ورځے شپے ئے هم دغلته اَړوَلے

# دَ علي خان په شاعرئ دَ عبدالحميد بابا اثر

د علي‌خان د ژوند، قام قبيلے اؤ ځائے ځائيګي په حقله د ليکوالو ترمنځه دوه نظريے دي. ديوے ډلے خيال دے چه دا هم هغه علي‌خان دے څوک چه د محمد افضل خان خټک ځوئے، د اشرف خان هجري نوسے دَ خوشحال خان خټک کړوسے اؤ د کاظم خان شيدا ورور دے اؤ چا چه دَ پلار د مړګ نه پس خپل يو ورور سعدالله خان سره د قام په مشرئ د خټک جګړے نه پس آکوړے پريښو دو اؤ بے نخښے بے پتے هستنغر کښے ميشته شو.

خو د بلے ډلے دا رائے ده چه علي‌خان د هشتنغر اصلي اوسيدونکے وو دغلته پيدا شوے دے اؤ د ژوند ورځے شپے ئے هم دغلته اړوے

وې. دده په ډې هم خیال په دې لړ کښې دده دا یو شو شعرونه راوړاندې کوو.

"که یار نه وینم دې په هشتنغر کښې
پښتوم به له وطنه پسې سر مخ"

"هشتنغر شه کان د زلفو د دلبرو
څکه نشته په دا ملک دو کان د منګو"[1]

"نه پوهیږم زه د چا په زړه څکه غولاده شم
ښکلې سادې صافې اوبه دي د جنډۍ"

علیخان دا کوړی دوکه د هشتنغر رورستۍ نظریه څه دروند والې لوی) نامونږ د موضوع نه بهر بحث دې. دلته نامونږ تعلق دده د شاعرۍ هغه برخې سره دې کومه چې د حمید بابا په رنګ کښې رنګینه شوې ده او دده د قام قبیلې اوډروند سره موخته خاص غرض نشته دې. علیخان د حمید بابا نه ډیر کشر وو. خو څومره موده کشر وو؛ په دې حقله هم پوره او صحیح اندازه لګیدل ګران دي.

حمید بابا او علیخان دواړه د پښتو ادب د نازک خیالۍ د مکتب نوموړي شاعران دي او پښتو ادب ته ئې داسې فن پارې پرینښودې دي چې تر عمره پورې پرښته وياړ کولې شي. د علیخان د شاعرۍ نه دا صفا جوتیږي چې هغه د حمید بابا کلام لوستے وو او ښه ترې متاثره شوې وو څکه چې یو نو کومه نامکه د حمید بابا ده نو هغه دده هم تر ډیره حده اختیار کړې ده. دغه وجه ده چې

[1] د ده د اخلاق سپاپیری وکوه قاف ستائی؛ حسن د ښون دے یا بیا د هشتنغر حسن (رحمت الله درد)

د دغو کښو اشعار د حمید بابا په رنګ کښې لړلي ښویدي او داسې ښکاري چه عن هم د حمید بابا اشعار دي لکه د حمید بابا د یو غزل دا څلور شعرونه وګورئ ـ

"هسې زړه د ښان په غوښو کښې عشق بوخت کړو
لکه نه خیژي له ښانه د پمن لاس
ښکه ما د عشق په تورو ښان شهید کړو
چه ې نه رسي د صبر په کفن لاس
هر ساعت ې هسې تاو تر سر را خیژي
چه ایښوې نه شي په سر زمانګړن لاس
مرګ اوژوند زما پوښته له مړاو ستړکو
په رسا کنذار پوهیږي د تورزن لاس"

او دوې بالترتیب د علیخان دا څلور شعرونه هم په دغه قافیه ردیف او خیال په دې شکل وګورئ ـ

"زړه به ښکه ستا له مینې لاس وکا بړم
کله خیژي له صورته د پمن لاس
شهادت ې ښکه ستا د سترګو خوښ شو
چه ې نه رسي د لسبره د کفن لاس
چا ې ښکه لاس د ړاړه په سر دانه ښکه
چه د روغو خلقو سوزي په تبړن لاس

خو دے زخم د زړه ستا سترګو ته ښائے دے
په رسا ګذار پوهیږی د تورزن لاس"

د حمید بابا او علیمخان د غزلونو د دے اشعارو تر منځه د دومره زیات مشابهت نه صفا معلومیږی چه په دے قافیه ردیف د غزل لیکلو نه وړاندے علیمخان ته د حمید بابا غزل لکه چه یاد وو کنی دومره زیات توارد به وے راغلو - په یو غزل کښے د ۲ شعرو دومره زیات توارد نه علاوه د علیمخان په دیوان کښے ځائے په ځائے داسے نور ډیر اشعار هم شته چه د حمید بابا اشعارو سره سمون خوری لکه د حمید بابا او علیمخان د غزلونو د دے دوو بالترتیب مطلع خیال او الفاظ یو بل ته څومره نزدے دی -

"خط په مخ د صنم داغ که سپوږمئ شوه په هاله کښے
داغ عاشق په ځله کښے زیب کا که شراله شوه په لاله کښے"

"خط په مخ د صنم داغ که میاشت ګیره شوه هاله کښے
که سنبل دے اوس څوکیږی په اطراف د لاله کښے"

د غسے د واړو شاعرانو په خپل خپل کلام کښے یو ځائے زړه "یار" د غم اوره ته د "پیښور" او "زړه" "یار" او "سترګو" ته "د تیراه" سره په یو ډول تشبیه ورکړیده - داسے ښکاری چه علیمخان دا شعر د حمید بابا د شعر په رڼا کښے لیکلے وی لکه چه حمید بابا حقیقت کښے په دے شعر کښے د خپل ماحول او علاقے یوه زبردسته عکاسی او ترجمانی کړے ده کوم چه د علیمخان د ماحول او علاقے سره هیڅ سمون او برابرے نه خوری. حمید بابا

وائی۔ ؎

"په زړه د ژړه د مه کوم کنګره جوړی
د ے وران داپیښور په دا ستیرا که"

او علیخان وائی ؎

"او د غم په خیم یاران داوسکو وژنی
پیښور د وطن خروب په دا ستیرا که کا"

هسې خو د علیخان په دیوان کښې ډیر ښکلی شعر ونه شته دي
ولے کوم ادبی کیف، ملاحت او حلاوت چه د هغه په دے شعر کښې پروت
دے ګورے که بل یو شعر کښې موجود وی. وائی۔ ؎

"چه سرے شوندے سبز خط ئے راپه زړه کړم
سرتر پایه سره لمبه شم ښنه د وزه"

خو که او کتے شی نو حمید بابا هم د غه خیال په خپل کلام کښې ډیوپه شا ئے
په دوو شعرونو کښې بیان کړے دے وائی۔ ؎

"دا ئے خط نشوونما کاندے له مخه[1]
یا نرے نرے لوګے ځی له چراغه"
"سپیلنی غوندے په اور د نو خط حسن
سرتر پا یه سره لمبه شم ښنه لوخړه"

په دے شعرونو کښې د دوا ړو شاعرانو د خیال د هم آهنګۍ نه علاوه

---

[1] دا فیاړ ئے د خط پا سیده له مخه: مخوالله که له لپے ښه ښکاره دود" (رمضان الله خان)

د الفاظو یو والی ته هم کتل پکار دی۔ کنی د دواړو ترمینځه د الفاظو د مشابهت په لړ کښې د علیخان د پورته ذیر شوی شعر آخیرنئ مصرعه د حمید بابا د یو ترکیب بند نظم د دے شعر آخیرنئ مصرعے سره مقابله کړئ۔

"که د مینه وی رښتیا له دے ر موزه
سر تر پا یه سره لمبه شم شنه که دوزه"

د غسے د دواړو شاعرانو د نازک خیالئ دے شعرونو نه هم صفائانه نکی چه یو شعر د بل شعر په رڼا کښې وښیلے شوے دے۔ حمید بابا وائی۔

"لکه سر د لیښه په اور غانبونه سپین کا
ما له نن له دیره غمه خندا را غله"

او علیخان هم په دے قافیه ردیف دا خیال داسے راوړے دے۔

"وا ره خله لکه پر هر له دراده خاندم
ستا جفا ته له حیرته خندا را غله"

او یو بل ځائے دا خیال داسے راوړی۔

"غم د تبسم په جامه نغاړم له ډُکړی
تل لکه گُلاب په پریشانئ کښے په خندا یم"

د دواړه شاعران د ښنادځ نزاکت او نبا ښت ځه په ښه ډول ستائی۔ حمید بابا وائی۔

"له هغه ځنه به ثوک ننګه بوسه اخلی په نے ځ دی د اومو پیټو پیژوے"

او علیخان د دے شعر تائید داسے کوی. ـه

"اننګی ئے په بوسه سره زخمی شول
د او مو پیشو پیروی دی که نه دی"

د غسے دواړه شاعرانو د اشنا وروځو ته یو شانله دلورسره تشبیهه ورکړے ده. حمید بابا وائی. ـه

"په ربیبی ئے بے صرفه د زړکی وُ ے
کږ ے وُروځے دی د یار که لور د ے دا"

او په دے حقله علیخان وائی ـه

"خنګه به ے روغه د زړه ځوکه دوباره شی
تورکو په زور دے د ابرویو په لاړه دی"

او دواړه د یار خُکله په دے شکل ستائی. حمید بابا وائی ـه

"چه ئے ستاد تنکے خُلے تصوّر وا خیست
په دے فکر کښے غنچه شوه په زړه تنګه"

او علیخان وائی ـه

"زوړ ندے سر که غنچه مراقبه کړی
چه زما هد د تنکے خُلے ته وسواس واخیست"

او دواړه د محبوب د زلفو ستائنه په دے ډول کوی.
حمید بابا وائی ـه

"مخ ئے هسے کړ وړے وهی د زلفو
چه ئے پاس د زړه په سرکی پچوے"

او علیخان وائي چې

"هغه زړونه به مدام له درده ځوري
په دهلي کې وي د زلفو په پېچو کې"

د غه شان د دواړه شاعران په یو بل ځائے کښې په عاشق د محبوب د تورو زلفو اثر دا سې ښیئي. حمید بابا وائي چې

"چې په هند د تورو زلفو څوک غریب شي
دوباره نه شي راتلے له دے غربته"

او علیخان وائي چې

"تور طالع زما د ترکو تورو زلفے
مسافر به مې آخر د هندوستان کړه"

په مینه محبت کښې څوک هم رقیب زغملے نه شي او بیا په تېره پښتني ماحول کښې خو د رقیب زغمل ډېر ګران شوي دي. د غه وجه ده چې په دا دواړه شاعران هم خپل خپل اشنا ته مخامخ په ډاګه وائي. چې په حیثیت د یو پښتون به ستا د رتنه د رقیب راتګ چرے هم او نه زغمي. لکه چې حمید بابا وائي چې

"یو به نه سم مخلوا له د رقیب ستا
که زړو کړے ټوم رښتیا له پښتنه زما"

په دے شعر کښې مخلوا له تیکه د زور ظلم او زیاتي د پاره استعمال شوے دے او یکښې د مغل او پښتون ترمینځه جګړو ته اشاره شوے ده. علیخان هم په دغه تلمیح کښې دغه خیال دا سې ادا کړے دے چې

"د کوڅې کوټه به دې پرې نه ږدم رقیبه
آفریدے شوم د مغل ته خیبر نیسم"

زمونږ د دې دوه ړو شاعرانو په نزد مینه یو داسې شے دے چه په ځا د دې سورے وشي نو بیا هغه هرڅه ته چه وي د ښکلي محبوب په خیال کښې به ډوب پروت وي او د دنیا نورکاروبار سره به هیڅ سروکار نه لري. د دې اثر چا خاص خلقو پورې تړلے نه دے او د مینې په خیال کښې هغه شیخ او زاهد هم راګیر دے شي څوک چه د زهد او تقوی لوئے لوئے دعوے کوي. او حقیقت خو دا دے چه داسې خلق یو خو په مینه کښې او تخیلي نو بیا نه خو زاهد وي او نه هغه توبې. بس یو زیار خیال وي چه د دې پکښې هر وخت ورک او ډوب پروت وي. په دې حقله د حمید بابا دا یو شعر وګورئ. ـه

"سل توبې که د زاهد په تندي ماتې
پرې دې نه ږدي په ښیښې کښې ته ونیسا"

او خلیمان دا خیال داسې بیانوي ـه

"څنګه له شیخان لاړې د پرهیز او د تقوی که
پوچ د دریا نه هد به لا ښکلې په سرمات که"

د دنیا په هم عشق یو داسې طاقت دے چه ښه ښه ځوانان ئې ایږ زولي دي او د رب قدرله ئې ترې وهلے نه دے. د دواړو شاعرانو په نزد د زاهدانو په خلوت کښې ننوتل د عشق د اثر او سوري نه ویره ده. لکه چه حمید بابا وائي ـه

"رستمان د صبر نه هم لکه وړوکی
ننوځی په خلوت د عشق له خرَ په"

اؤ علیخان وائی ـــ

"تاب د کتو سنا نه شی راوړے ځکه پټیږی
دا چه په صحرا کښے نه هم ان کړ سوړے کړه"

اؤ څوک په یوځل مئین شی نو د هغه نیپله رضا ختمه شی اؤد
اشنا رضا د هغه رضا شی. لکه په حمید بابا وائی ـــ

"په جلب دِ د اختیار و نښکلیو و دکړه
پسے ګرځه اوښی په نته نه ئے خلاص"

اؤ علیخان په دے مقله وائی ـــ

"په عنو نو باندے نښتے لکه اوښی ځم
چه مے عشق په لاس د طفل مهار ورکړه"

د معشوق بیوفائی په دُنیا کښے منلے شوے ده ولے عاشق څوار
څه وکړی د نپل زړه نه مجبوره وی که محبوب هر څومره بیوفائی
کوی ولے د ده زړه ترے نه تورېږی. د اشنا د غفلت اؤ بے رُخئ
په وجه که دے نپل زړه له په څه تسلی ورکوے شی نو هغه ترلا اؤ
فریاد د ے ګنی نور د نپل زړه خوشحالولو د پاره د ده په وس کښے هیڅ
نه وی. په دے لړ کښے د حمید بابا دا یو شعر وګورئ ـــ

"زړه به درسته شپه ژړا لکه شبنم کړم
خاندہ نه دګل په څیر تا زړه خوشحال"

او علیخان وائي ؎

"زهٔ در پسے درسته شپه ژاړم لکه پرخه
نه صبا خندان لکه ګل وانه ګریوان دچاکے"

او حقیقت خو دا دے چه د عاشق د کامیابئ راز هم په ژړا او فریاد کښے پټ دے لکه چه حمید بابا وائي ؎

"تل د اوښکو په اوبو کښے لره تر مخ
په دغو اوبو کښے لیده شي د ګوهر مخ"

او علیخان هو بهو هم دغه خیال هم په دغه قافیه ردیف داسے را اوړي دے. ؎

"زیات طلب کړه د اوښکو په دریاب کښے
ګوندے دلته دے نصیب شي د جوهر مخ"

او څوک چه د آشنا په هجران کښے شام دام ژاړي او په آسویلو هونو ئے خپلے شونډے وچے کړے کړے وي نو هغه د دنیا نورو غمونو او مصیبتونو نه هم خلاصے بیا مومي. حمید بابا په دے حقله وائي ؎

"چه په اوښکو پسے ژاړم وچے شونډے
تماشه د بحر و بر کوم په کور کښے"

او علیخان وائي ؎

"وچے شونډے په نم د سترګے ګرځم
پسے غواړم د دنیا د بحر و بر مخ"

دا د دنیا دستور دے چه خپل ځان نفه کړے نو بل به خوشحاله

کړے. اُو په خپل ځان خوشحاله وے نو بل به درنه ضرور خفه وی. نو تکړه اُو نوځوان هغه دے چه خپل ځان خفه کړی اُو بل ترے خوشحال شی. دانسان دکامیابئ راز هم په دیکښے دے چه خپل ځان انسانی خدمت ته وسپاری اُو بل ترے خوشحاله شی. په دے لړ کښے حمید بابا وائی اُو ته ښه وائی

"دلجوئی دخلقو کړه دځان په سوځلو          که دشمع په څیر بل اُورونید ارکښینی"

اُو علیخان وائی

"څو په بله لمبه پورے په تن نه ځی          په خپل ځان به شمعه تول انجمن نه کړه"

دحمید بابا اُو علیخان دکلام نه معلومیږی چه دژوند په آخر کښے دواړه دمجازی مینے نه ستړی ستومانه شوی دی اُو دحقیقی مینے په تلاش کښے اخته شوی دی. لکه چه حمید بابا وائی -

"لکه څوک چه کیتوری غواړی له زانړو          هسے ښائستو ده وفا تمنا یُو چه"

اُو علیخان هم دا خیال په دے ډول بیانوی -

"چه امید د وفا کیږی له دهر ه !          دا له زانړو کتو رے غواړے موهومه"

دحمید بابا اُو علیخان ترمینځه د دے ورکوتی شان موازنے نه پس اد ګرانو لوستونکو پام دے اړخ ته راګرځول ضروری ګنړم چه د دواړو شاعرانو کوم اشعار دموازنے دپاره وړاندے کړے شوی دی. دا هغه اشعار دی - کوم چه یا خوما ته په یاد وو. اُو یا ئے خیال زما په ذهن خور دوړ پروت وو. کیدے شی چه د دے نه علاوه نور هم داسے ډیر اشعار وی. چه یو تربله په خپلو کښے سمون خوری. خو زما تر پامه به راغلی نه وی -

---

# حمید بابا
# او
# کاظم خان شیدا

کاظم خان شیدا د افضل خان خټک ځوئے د اشرف خان هجري نمسے او د خوشحال خان خټک کړوسے دے. د ۱۱۳۵ هـ خوا و شا په اکوړه کښې پیدا شوے او لوئے شوے دے. او د پلار د مرګ نه پس د خپل مشر ورور سعد الله خان خټک ځنې د ناچاقۍ له کبله ئې وطن پرېښودے دے او اټک نه لاندې د هندوستان په مختلفو ځایونو د ګرځېدو نه پس زړه خوږېنې او زړه سنړې په رامپور کښې مېشته شوے دے او د ژوند نوره پاتې برخه ئې هم دغلته تېره کړې ده او هم دغه ځائے کښې په خاورو سپارلے دے.

د کاظم خان شیدا له کوره وتل او بے سر و سامانه او بے آسرے ګرځېدل که یو طرفته د پښتنو ترمینځه جنګ جګړے او بے اتفاقۍ د سړی زړه خوږه وی. نو بل پلو پښتنو ادب ته د هغه د غمونو ډک دیوان



ادیبان اُو شاعران دعبدالحمید بابا په مزار دګلو نوښادرغوړوي ۳ ر دسمبر کال ۱۹۷۲ء

زمونږ د زړه ملهم او پټه کړئ. او د هغه د مسافرئ او دَرپه در ګرځند ژوند ځنې د هغه دردنو سالو سره سره مونږ د هغه نه خدمت او کړو او د پښتو ادب د پاره یو نیک فال او د الله تعالیٰ نه یو دیر لوئے رحمت ګنړو.

کاظم خان شیدا د پښتو ادب د نازک خیالئ د مکتب یو پیاوړے غړے دے او حمید بابا نه پس ورته د نزاکت او باریکئ په میدان کښې دویم مقام حاصل دے. حمید بابا د دے مسلک لارښود او لارښوونے دے او د رحمان بابا د "تصوّف" او د خوشحال خان خټک د "قومیت" په شان د نازک خیالئ ځانله یو بیل مسلک لري. او په پښتو ادب کښې د رحمان بابا او خوشحال خان خټک ځنې سم ځانله یو دروند او لوړ مقام پیدا کوي.

ے

"دَ حمید د ساده شعر کمال ګوره

په شمله شو دَ تمام سرپښنی"

د حمید بابا نه پس د نازک خیالئ یو بل نامتو شهسوار کاظم خان شیدا میدان ته راڅرګند شو او د نزاکت او باریکئ هغه جنډه جګه او پورته ساتي، کومه په حمید بابا او چته کړے وه. او د خپل فکر اَس په داسے ډګر غلوي په خپل سواره ملګري ډیر ورو ستوشا ته پاتے کوي. او دے ترے زښت مخکښے وځي. تر دے چه د ځنے فن شناسانو تر ځنې د حمید بابا نه هم وړاندے لاړ شي. خو بیا د حمید بابا د ځنې کم وزیات پیټوس کالو د مشرئ لحاظ و ساتلے شي او د انعامي مقابلے په دے دَو کښې ورله دویم انعام ورکړي او د اولیت ګهره هم د حمید بابا په

سر وُ تړی اؤ د عربئ ژبې دا مقوله «اَلفَضلُ لِلمُتَقَدِّم» رهر مخکینی
ځیز او خپواله اؤ فضیلت لري) نو مخې وساتي اؤ عمل پرې وکړي۔
حمید بابا اؤ کاظم خان شیدا دواړو د شاعرئ په ډیرو صنفونو
د خپل طبیعت زور ښکاره کړے دے. د نورو صنفونو په نسبت د دواړو د
شاعرئ لوے اؤ پلن ادبي د میدان غزل دے اؤ خپل زور فکر اؤ د دغے
خیال ئے هم د غزل په جامه کښې ظاهر کړے دے. د دواړو د شاعرئ
زیاته برخه اګر چه مجموعي طور مجازي عشق دے. ولے د اجتماعیاتو
په حقله هم د دواړو څه کسر پرېښودے نه دے اؤ دومره څه ئے لیکلي
دي چه که نن یؤ لیکونکے د دوئ د عشقیه شاعرئ په حقله قلم راپورته
کړي نو د اجتماعي شاعرئ په حقله به ئے هم ضرور څه لیکي. ګنړه د دوئ
د شاعرئ په حقله به دغه موضوع نیمګړے اؤ نامکمله وي اؤ هیڅ خوند
رنګ به ئے نه وي.

اجتماعي معاملاتو څخه زمونږ د دواړو شاعرانو لکه د جونګ اؤ
د لمن کلک نینګ اؤ جوخت تړون دے اؤ په هیڅ حالت ترے اخوا دیخوا
شوي نه دي. که حمید بابا هرڅو دے غرض د پاره پوره پوره غزلے
ور وقف کړې دي، نو کاظم خان شیدا د هر غزل په لړ کښې د عشقیه
شاعرئ سره جوخت پیوند لے دي اؤ د غزل نه ئے د ښائسته وبوټانو
اؤ رنګارنګ ګلونو امیل جوړ کړے دے، چه وګړے به ئے تل ترتله د
پښتنو څخوا په کوټه کوټ خوږے ورے وي اؤ د هر وګړي ماغزه به
تازه تازه اؤ خوشحاله ساتي۔

نزاکت باریکی ادبی لوړتیا، او پټ تخیل نوے نوے استعارے تشبیهات، اشارے او کنائے نه مونږ ددے دواړو شاعرانو د کلام خاصه ده او بیا په تیره تیره د کاظم خان شیدا دیوان خو دداسے لوانه ماتونه ډک پروت دے په هر شعر بلکه هره مصرعه کے د ادبي لوانه ماتونه مرۀ پته ده او پښتو ژبه کے دنورو ترقی یافته ژبو هم سیالم کړیده. دلته د خپل خیال په ثبوت کښے سبا غلو لوستونکو ته لے دیوُ دړیو شعرونو په راوړلو اکتفا کوم.

ے

"په بیمار ستا د چشمانو ژوندون تریخ شو
وَغمزے قاتل ته ؤ وایه تلوار کړه"
"ما لباس ورپیے رنګ دګل په شان کړو
لکه بوُټی هسے ۓ اوُوت له آغوشه"
"بے خبره ۓ نوبهار دَ حِنا بوُ لی
ستا په لاس کښے تانره ګل له شرمه آب شو"

د کاظم خان شیدا دَ شاعرئ یوُ خاص وصف دادے چه په هر شعر کښے نوے نوے خیال او نوے نوے تشبیهه او استعاره راوَلی. او دیوُ خیال یا تشبیهه وغیره دوباره راوستونه په وَس ځان ساتی او داسے شعرونه لکه:

ے

"د مجنون دا ده لوخړے دی په خپل ی
که بل شوے د صحرا په دامن اور دے"

"د مجنون دَ آه لوخړے دی په خیژ ی

که بل شوے د صحرا په دامن نارا دے"

دَ کاظم خان شیدؔا په شاعری کښے ډیر کم مونده شی. ولے حمیدؔ بابا دوے خبرے دومره خیال ساتلے نۀ دے اُو دیؤ خیال په بار بار راوړلو کښے ئے هیڅ پرواه لرلے نۀ ده. اُو دغه شان دیو شعر د خیال خوند ئے په بیا بیا وینا بے خونده کړے دے اُو هغه ترسکونوالے ئے پریښے دے نۀ دے، کوم به چه د دغه خیال په دغه یو شعر کښے وو. لکه په دے خلورو شعرونو کښے چه په اولنی شعر کښے کومه چُستی سادگی روانی اُو خوبوالے دے هغه په دے نورو شعرونو کښے نشته دے. د ټولو شعرونو خیال یو دے خو صرف الفاظ ئے بدل را بدل دی۔

"لکه سَر د نیښتر په اور غاښونه سپین کا

مالۀ نن لۀ ډیره غمه خندا را غله"

"هسے زۀ بے خونده خاندم په هجران کښے

لکه خاندی د نیښتر سَر په اور ا لوے"

"زۀ لۀ غمه چینګه خُندا را پو فریاد کړم

نا خبر ے په خندا بولی هنوزا"

"عین لکه په اور نیولے سرکه داړے چینګے

زۀ هنیے په هجر کښے لۀ غمه په خندا یم"

د حمیدؔ بابا اوکاظم خان شیدؔا د کلام ترمینځه یؤ غټ بیلتون اُو تو پیر دا دے په کاظم خان شیدؔا د یؤ شعر د خیال باریکی اَو

ژور بنیم نه په شومره ورکوز یږی نو دومره ئې دلاس نه د شعر پُستی، روانی، ساده توب، اُو سوچه بوبه پښتو پر یوځی اُو ګران دراتنه اُو د نورو ترېو تکی (خصوصًا د عربئ اُو فارسی ژبې) داسې بې خرته راننباسی په د شعر خوند اُو مزه پیکه سیکه کړی اُو سړې د شعر په نور د هیڅ پوهه نه شی. خو بلې غاړې ته د حمید بابا اشعار پُست، روان، ساده اُو صفا سُوچه پښتو کښې دی اُو ثقیل داسې ګران تکی اُو اصطلاحات پکښې نشته دې چه یو عام نالوستے به پرې وُ نه رسی اُو یا د چا په مازغو به بار شی۔

د حمید بابا اُو کاظم خان شیدا ترمینځه که په محکښې اوو یئيلے شول، ثقه کم و ترېات پنحوس کاله مشری کشری ده. حمید بابا مشر اُو کاظم خان شیدا کشر دے. ولے د دوؤ فنکار ترمینځه د چا د مشرئ قدر نه، بلکه د هغه د فن قدر روی. دغه وجه ده چه کاظم خان شیدا که د خپلې شاعرئ شاعرانه تعلی کوی اُو وائی چه:-

"کړه ئې وا نکه ګېره د تو روترلفو
باریکی لری تمام دیوان زما"
"انتظار رستاد ګفتار سخنفهمان که
خاموش مه اُوسه شیدا شیرین سخنه"

نو بیا هم د خپلې نبه شاعرانو د شاعرئ منته کوی اُو د هغوئ

اُستاذئ اَو ادبیت مقام نه دیر په غرت اَو احترام سره خپل سرټیټوی اَو د خپل عقیدت اظهار کوی لکه په دے بیٔو شعر کښے که یوُ خوا د خپلے شاعرئ صفت اَوستائنه کوی نو بل خوا د رحمان بابا اَو حمید بابا مقام ټومره په سِیٔه شان بیٔو نه وی۔

"په دا وخت کښے که شیدا دواړه مومند دی

ثنا خوان به وو هر وخت ستا دویٔلو"

اوګورئ! کاظم خان شیدا د رحمان بابا نه علاوه دَحمید بابا نه هم ټومره متاثره دے اَو ددے دواړو مومندو شاعرانو کلام پرے څنګه لکه دَ سِحر اَو جادو کار کړے دے

"په مومند و فیل و قال کړو

یعنی دوئ سِحر حلال کړو"

اَو هم دغسے د رحمان بابا اَو حمید بابا په وجه د پښتو د شعر په حقله په خپل یوُ اوږد نظم کښے د پیښور ښار سره جوخته دمومندو علاقه دپیښور په نوم په دے ډول ستائی

"دا دَ رډه قطعه تمامه | کله رسی تر "باګرامه"
سر تر پایه رنګ امیزی دی | رنګینه اَو خیال انګیزی دی
په بهار کښے ګلونه | نعرے اوَرم د بلبلو
بلبلان ئے خوش تقریر دی | دَ طوطیا نو هم صفیر دی
په دیار د تمام "روه" کښے | په دا قام په دا ګروه کښے

یوُ په "سرائے ځ‌ږ بان آوردی" دویم ځائے ئے د پېښو رۀ دی د غه شان د ځینې نورو پښتنو شاعرانو د مطلعو په تضمین په خپله یو مسدس نظم کښې د حمید بابا د یوُ غزل دا مطلع هم راوړې ده چې:

"آرزومند د یار د درد په دوا مۀ شه
بېګانه د خپلو مینځ لره را مۀ شه"

د مسدس ټول بند په دے شکل دے۔

"چه طبیب د ناپه کوټې کښې ورود کړی
که نزاکه په علاج د لحد مړی"
ورته ووایه د زړۀ اختیار د ګړے
وئے آچوے په سنو کو کښې خستړی
آرزومند د یار د درد په دوا مۀ شه
بېګانه د خپلو مینځ لره را مۀ شه"

حمید بابا او کاظم خان شیدا د مینې محبت د اور هغه سوی پتوی پتنګان دی چه که نور څوک له د غه اوره ځان بچ ساتی او د خوشحالۍ طمع لری نو دوئ دوا ئې په تکلیفونو او دردونو کښې پراته خوشحاله دی او د عشق په اور کښې لکه د سمندر چینجی ګندران ګڼل خپله خوشحالی او خوش قسمتی ګڼړی او هم په د غه سوزوګداز او دردو غم کښې خوښی د خپل نېکمرغۍ آشنا لیدل غواړی لکه چه دوا ئې بالترتیب وائی:

"الهی د محبت سوز و ګداز را
په دا اور کښې د ستی سمندر ساز را"
"الهی د محبت درد و فغان را
په معصوم کنار د نمرغونډې جانان را"

او دا ځکه چه کله اشنا په کوتو را شی. خو شبه شوه. او که نه وی نو د عشق په دا سې لیونو اُسرو هلو بر و هلو د هر چا خیال او پام وی او پس له مرګه ئې خلقو په مزار باندې بازار جوړ کړے وی. لکه په حمید بابا او شیدا بالترتیب وائی: ــه

"یے د سنګلو د پا و لیو ښر نکهار دے
یا د عشق د لیونیو د نا نختیں"
"محبت وړلی یادشی پس له مرګه
نه چه مړه په توده تبه لګه اوردی"

حمید بابا او کاظم خان شیدا دواړه د یو داسې سترګو مشین دی چه په تود والی او جادو شان له اثر کښې ئې په ټول هندوستان کښې څوک سیال او ثانی نشته دے. په دے شعرونو کښې تور والے هندوستان او نغ تو د نښال جادو سره تشبیه دے او دا دے دپاره چه په دغه زمانه کښې داټک نه لاندې د هندستاد خلقو لودوا … دیر کال په تربیاده دیر مشهور وو په دے حقله حمید بابا وائی: ــه

"هسے رنګ سحر جادو کړی په نظر د شهلا سترګو
نه ئې سیال په هند کښې شته دے نه ثانی په بنګاله کښې"

او کاظم خان شیدا وائی: ــه

"پکښې نښتې سیاه مست د هغو سترګو
ګرځیدلے په دراست هند په بنګاله یم"

د غسې په یو بل ځائے هم د غه خیال حمید بابا او کاظم خان شیدا هر دوارو بالترتیب د خپل غزل په مطلع کښې په دے ډول بیان وی

"په نظر د تورو سترګو شوم واله
ځکه نه ځا په وختم په بنګاله"
"په ادا د تورو سترګو دلبری که
که د هند جادوګران جادوګری که"

لکه په بنګاله کښې د هر عاشق د خپلې معشوقې د هر څه سره دومره بے حده او بے کچه مینه وی په ټولے طور طریقے او عادتونه ئې خپلوی او هر هغه څه کوی چې په څه هغه خوشحالیږی او هر هغه څه سره مینه لری کوم چې د عاشق د معشوقې وی او یائې ورځنه یو پوځ قدره له تعلق پاتے شوے وی. عن د غسې خبرے یا د بدن بوئی چې یو مردار او سخا خیز دے او د بوئی نه ئې هر انسان کرکه کوی. خو چه هر کله د خپل اشناوی نو دے ئې له عطرو او د ګلونو د بوئی نه ډیر سینه کښری او د هر وخت بوئیو لوئے شوق او خواهش لری. د غسې د سر ونجتے دی چې د هر انسان یو قدرتی وګمه لری او که قدرتی نه دی نو د بوئی ناکو تیلو په استعمال خو ترے ضرور د غه تیلو بوئی ځی. تیل ټول یو دی خو سرونو کښې فرق دے. ونجتو کښې

فرق دے. گُلُنی او شفتی هم خر دُوبه وینځنه لری. او نورے ډیرے سناسته ښکلی پیغلے هم وینځنه لری. ولے کوم وینځنه چه د عاشق معشوقه لری، هغه دا یو هم نه لری. نو ځکه که هغه هم دغه بوټی نه دنا خو او مشکو بوټی ووائی یا لدے نه هم زیات ورکړی نو کرم او پرته دے او هیڅ مبالغه نه ده. په دے حقله زما دوستانو او د ناصح رائے بے قدره او بے حسابه ده او ځنه وتحت نه نشته د د زلفو د بوټی په حقله حمید بابا وائی.

"د ختن د مشکو نن شو رانه سهل
چه نے بوټی د زلفو راغے تر دماغ"

او کاظم خان شیدا دغه خیال سره دا سے اتفاق کوی.

"بوټی په زلفو کښے زما گلبدن را وړه
که په دام کښے نے آهو د ختن را وړه"

زمونږ دا دواړه شاعران نه یوازے دا چه د زلفو د بوټی په حقله یو خوله او یو آواز دی بلکه د آشنا زړی او باره یکے، مسله په حقله هم دواړه یو خیال دے لکه چه حمید بابا وائی

"د چالاک په کمربند د هغے ملا شی
چه هرگز له باریکئ نه شی لیده"

او کاظم خان شیدا وائی:

ے

"په بیانه موند هیڅ شانے له باریکئ

عجب مو په دادوران ددے کمر دے"

خو حمید بابا او کاظم خان شیدا د یو داسے حسن خپلولو په تلاش کښے دی چه ملا نه ئے لاس چا پیدا کول پریښی ده هغه خو هم د سره په زړه کښے ارمان نه لری. دوئ ورته د بیس خواستونه او زاری منت وکړی خو هغه ئے په غوږ قدر هم ونه لګئ او دوئ په غم فریاد او آسویلو هیڅ نرمه ونه سوزئ آخر دوئ هم ستړی ستوما نه شی او د اشنا دغه ناکامو او ناکړدو ته توره ډال کیښږدی.

حمید بابا وائی ے

"چه اتش دیار په زړه نه کا څوک خه کا

که ے آه له بیخه غروونه نړوی"

او کاظم خان شیدا وائی ے

"چه نرما په آتشین آه نرم نه شه

زړه دِ سخت را ته ترسنګ وآهن راوړو"

د حسن و عشق د دې نکیتو او شکلو نبا ستهٔ و شعرونو نه علاوه د عبد الحمید بابا او کاظم خان شیدا د اجتماعیاتو په حقله هم د اشعارو کافی ذخیره او پنګه لری او هغه تهوے اجتماعی مسئلے

# دَحمیدبابا په مزار



شاعران اؤ ادیبان دُعا غواړي۔ ۳ ، دسمبر کال ۱۹۷۲ع

او خامخا په کوم ته کوی کوم چه د معاشرے د ترقۍ او پرمختګ په لاره کښے اړوی او انسان کمال نه زوال ته راولی او د غفلت او بے خبرۍ تورو تیرو ته ئے راغورځوی. دواړه انسان ته د انسانیت ښود نه کوی او فرد ته د خپل ځان نه بیګه د ټول جهان د خدمت درس ورکوی. ځکه چه د یو کس تکلیف د ډیرو خلقو د راحت او آرام باعث وی. او هم دیکښے د نورو خلقو د خیر سره د دۀ هم خیر وی چه نوم ئے همیشه د پاره په جهان روښانه پاتے شی او د تمام د ټنکی د لو لوګی ګرځی. دلته هم په دے حقله د حمید بابا دے یو شعر ته لږ ځیر شئ. هغه وائی او ښه ښه وائی

ـه

"په د بل د پاره ځان سیزی حمیده!
تل ئے وی لکه د شمع پایه بره"

او کاظم خان شیدا دغه خیال دا رنګ ادا کړے وی.

ـه

"آفروخته ئے وی محفل په شان د شمع
چه سوخته د بل په کار کښے خپل دماغ کا"

حمید بابا او کاظم خان شیدا د هغه بیکسو او بے دستو یتیمانو په مرسته او پرزه دی. څوک چه د ظالم له لاسه هیڅ بے هیڅه آزاریږی او بے ګناه بے خطا پرے ظلم کیږی. دوئ دواړه د هغه لستونړی لاس یدِ بیضا ګڼړی چه کوم لستونړی چه د دغه مظلومانو اوښکے

پا کے شوی وی او دا د اوښکی ورکړے شوے وی

حمید بابا وائی

ـہ

"د هغه سترګو لاس یې بېضا دی
په پرے اوچے کاندے اوښکے دیتیم"

او کاظم خان شیدا وائی:

ـہ

"د لدارئ کړه غنچه وار د ببلستانو
پاکیزه دیتیم اوښکے په آستین کړه"

او غنی یوسف خان خټک وائی:

ـہ

"څوک په زخم پاټ هم دی د بیکسانو
د یتیم اوښکے کړے اوچے په آستین چا"

زمونږ دادوار ه شاعران د هغه ظالمانو او جابرانو نه هم

د ښیلے وینا رټی اعلان کوی. څوک چه په نوارو غریبو بے وسے زورزیاتے

او ظلم کوی او کړ وی او تنزنوی ئے او تکلیف ورکوی. دوئی

د غه ظالمانو نه خبردارے او تو هم ورکوی چه له داسے مظلومانو

لاس په سرشئ گنی د د غه مظلومانو د ساړو آسویلو او آهونو

آزار به د داسے درپسے شی په چرے به هم ښه ورځ ونه وینئ او دا

ښه ورځ به مو په بدله بدله شی.

حمید بابا وائی

ـہ

"لکه خان ته غوري بربنډه تېرو تورو
هسې خپل سر له سپېرو د سر ژغوره"

او کاظم خان شیدا وائي:

ه

"احتیاط کوه شیدا له سرده آهه
سرد نفسي د صبح ته شعله انګیز دي"

حمید بابا او کاظم خان شیدا له داسې خلقو هم نفرت اڅرګند کوي او ورته په سپکه سترګه ګوري څوک چه هر وخت د بل په دروازه وي، خودي او پښتونه پرېښودي وي او سوال د پاره ئې بل ته لاس نیولې وي.

حمید بابا د سوال مذمت په څه ښه ډول کوي. وائي.

ه

"چه د بل په کوڅه ورشي سړے سپک شي
له ساڼده سره څکه سګان نښلي"

او کاظم خان شیدا سوال کوونکے تږي لوګي سره تشبیهه کوي. چه هر څوک ترې سترګے پټوي او څه ترې په بل لوري جار باسي.

ه

"له صوره ئې عالم چشم پوشي کړه
چه لوګي غونډے ولاړ په هر دیګدان وي"

حمید بابا او کاظم خان شیدا دغه شاعرانو شاعري ته سپک

ګوري څوک چه د بل شاعر د شعر مضمون راپټ کړي او په خپلو الفاظو کښې ئې پيش کړي. دوئ دوا ړه د خپلو دا سې شعرونو صفائي او ډسبتونوا لې کوي. د کومونيال که چرته په غلطئ سره د بل شاعر د شعر د نو ښخه سې خوري. دوئ وائي چه دا سې شعر وته به محض توارد او اتفاق وي. او د بل د شعر د مضمون غلا غلطيا او سرقه به نه وي.

حميک بابا وائي: ؎

"دانسته مضمون ډ نړ دي له بله نه کړه
د حميد و ټيل په خپله دي لذيذ"

او کاظم خان شيدا وائي ؎

"هر مضمون ئې طبعزاد دے ، ګل نړ مادرا ئې ايجاد دے
نه غلط نه مبتذل دے ، نه توارد ئې محتمل دے"

